وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلاَ تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا

# د جومات او منبر

# انتظام

مؤلف: حمدالله "شاکري"

# لړلیک

لومړی فصل

## په اسلام کې د جومات اهمیت

په اسلام کې د جومات آبادول د دین د قیام او بقا بنسټ کڼل کیږي.

لکه څنګه چې د انسان د ژوند د بقاء د پاره کور مهم دي تر څو انسان د سختې یخنۍ یا سختې ګرمۍ او نور طبعي آفاتو څخه وساتل شي او همدارنګه د هغه د لمر ، سیورې او نورو آسانتیاوو څخه استفاده وکړي همداسې جومات هم د دین د بقاء او قیام د پاره مهم دی جومات د ځمکې پر مخ د دین د نصرت او قیام د پاره لومړۍ نښه او ځای دی.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم چې کله قبا ته ورسید هغه سیمه چې له مدینې څخه درې میله لرې ده او هلته ته بې د قبلې د مشر شیخ عمر بن عوف په کور کې تشریف و فرمایلو . دوشنبه ، سه شنبه ، چهار شنبه او پنجشنبه په قبا کې پاتې شو، او هلته یې لومړنی کار د جومات جوړول وو چې خپله یې د هغه بنسټ کیښود او خپله یې د هغه په جوړولو کې برخه واخسته، چې دا جومات د اسلام په تاریخ کې لومړی جومات بلل کیږي . او همدارنګه کله چې مدینې منورې ته د هجرت په نیت ورسید د هغوی صلی الله علیه وسلم او صحابه کرامو رضی الله عنهم اولین فعالیت او کار د نبوي جومات جوړول وو.

چې هغه وخت نبوي جومات هم د عبادت ځای وه ،هم مدرسه وه او دارالشوری ( د مشورې ځای ) وو.

## د جومات جوړولو او بناء فضيلت

د جومات جوړولو په باره کې په قرآنکریم او سنتو کې ډیر فضائل راغلي دي ، د جومات آبادول د رښتني ایمان نښه ده .

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[ إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللَّهِ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَأَقَامَ الصَّلَاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلَّا اللَّهَ فَعَسَى أُولَئِكَ أَنْ يَكُونُوا مِنَ الْمُهْتَدِينَ](التوبة:18).

ژباړه : يقيناً د الله پاک جوماتونه هغه څوک آبادوي چې پر الله تعالى او آخرت ایمان لري لمونځ کوي زکات ورکوي او له الله پرته ( له بل چا څخه ) نه ویریږي نو هیله ده چې دغسې کسان د سمې لارې موندونکي وي.

همدارنګه د جومات جوړول ، ترمیمول هغه که په لږ مبلغ وي یا ډیر صدقه جاریه ده رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

«إِنَّ مِمَّا يَلْحَقُ الْمُؤْمِنَ مِنْ عَمَلِهِ وَحَسَنَاتِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ عِلْمًا عَلَّمَهُ وَنَشَرَهُ، وَوَلَدًا صَالِحًا تَرَكَهُ، وَمُصْحَفًا وَرَّثَهُ، أَوْ مَسْجِدًا بَنَاهُ، أَوْ بَيْتًا لِابْنِ السَّبِيلِ بَنَاهُ، أَوْ نَهْرًا أَجْرَاهُ، أَوْ صَدَقَةً أَخْرَجَهَا مِنْ مَالِهِ فِي صِحَّتِهِ وَحَيَاتِهِ يَلْحَقُهُ مِنْ بَعْدِ مَوْتِهِ » (رواه ابن ماجه و حسنه الألباني ).

ژباړه: هغه اعمال او نېکۍ چې د هغه ثواب د مرګ وروسته مؤمن ته رسیږي دا دي : د علم ښودل او خپرول ، نیک او صالح اولاد پرېښودل، د قرآنکريم مصحف پرېښودل او وقف کول، د جومات جوړول ، د مسافر د پاره د استوګنې ځای ، ویاله یا کوهي جوړول ، او هغه صدقه چې د

روغتیا او ژوند په وخت کې یې ادا کړې وي د هغې به هم د مرګ نه وروسته اجر او ثواب مومي.

همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

«مَنْ بَنَى مَسْجِدًا لِلَّهِ، بَنَى اللَّهُ لَهُ فِي الْجَنَّةِ مِثْلَهُ»[رواه البخاري (450) ومسلم (533)].

ژباړه: چا چې د الله تعالی د رضا لپاره جومات جوړ کړ، الله تعالی به د ده لپاره په جنت کې ځای جوړ کړي.

## په اسلام کې د جومات هدف او مقصد

جومات د اسلام هغه ستره نښه او شعار دی چې ددې ځای څخه خلکو ته د یوه الله (جل جلا له) د عبادت ناره او بلنه ورکول کیږي ، جومات د یو الله (جل جلا له) د عبادت ځای دی او بس.

لقوله سبحانه و تعالی:[وَأَنَّ الْمَسَاجِدَ لِلَّهِ فَلاَ تَدْعُوا مَعَ اللَّهِ أَحَدًا] (الجن:١٧).

ژباړه : او رښتیا چې جوماتونه د الله پاک دي نو له الله پاک سره بل هیڅ څوک مه بولئ.

په جومات کې تربګنت ، قوم پرستي ، سمت پرستي ، شرک ، بدعات او نور هیڅ ځای نه لري دلته به ټول خلک د یو الله اکبر په قومانده روان وي.

یعني جومات د مسلمانان د اتحاد او اتفاق بنسټ بلل کیږي.

جوماتونه د هیچا شخصي ملک نشي کیدای او نه ځوک کوم مسلمان د شرعي عذر پرته له هغه ځخه منع کولای شي.

لقوله سبحانه وتعالى: [وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّن مَّنَعَ مَسَاجِدَ اللّهِ أَن يُذْكَرَ فِيهَا اسْمُهُ وَسَعَى فِي خَرَابِهَا أُوْلَئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَن يَدْخُلُوهَا إِلاَّ خَآئِفِينَ لهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَلَهُمْ فِي الآخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ] (البقره: ۱۱۴ ).

ژباړه: او له هغه چا ځخه زیات ظالم ځوک دی چې په جوماتونو کې د الله پاک د یادولو مخه نیسي او د جوماتونو په ورانولو کې زیار باسي دوی ددې حق نه درلود چې جوماتونو ته ننوځي خو د وېرې په حال کې ، په دنیا کې دوی ته رسوایي او په آخرت کې ستر عذاب دی.

جومات د هغه عبادت ځای دی چې په اسلام کې د توحید ځخه وروسته دوهم رکن دی ،په قرآن او سنتو کې په لمانځه زیات ټینګار شوی دی،دا دومره اهم عبادت دی چې په هیڅ حالت کې یې پرېښودل جواز نه لري، که سړی جوړ وي په ولاړه به لمونځ کوي که ناوروغ وي په ولاړه یې نشي ادا کولی په ناسته که په ناسته یې نشي کولای په اړخ به لمونځ ادا کوي .

«المسجد» د سجدې کولو ځای ته وایي ، چې په دغه ځای کې د عالم ستر ښتن (جل جلاله ) ته سجده ایښودل کیږي او یوازې د هغه عبادت کیږي .

جومات یوه اسلامي مدرسه ده ، مسلمانان د الله (جل جلا له) یاد وعظ او تبلیغ ته داسې ضرورت لري لکه کښت چې باران ته ضرورت لري ، په

جومات کې خلکو ته اسلامې احکام بيانيږي او خلک د دين زده کړه تر سره کوي.

نو کله چې د ديني تعليم او خلکو ته د وعض او نصيحت سلسله روان وي د مسلمانانو ايمانونه تقويه کيږي او د نيکو کارونو د تر سره کولو کوښښ کوي او د ګناه د کارونو څخه ځان ساتي ( زړه يي په ايمان مطمئن کيږي ).

الله سبحانه وتعالى: فرمايي:[ وَذَكِّرْ فَإِنَّ الذِّكْرَى تَنفَعُ الْمُؤْمِنِينَ] (الذاريات :٥٥ ).

ژباړه: او ته نصيحت کوه، پس بېشکه نصيحت کول مؤمنانو ته نفع رسوي.

همدارنګه فرمايي : [الَّذِينَ آمَنُواْ وَتَطْمَئِنُّ قُلُوبُهُم بِذِكْرِ اللّهِ أَلاَ بِذِكْرِ اللّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ] ( الرعد ٢٨).

ژباړه : هغه کسان چې ايمان يي راوړی دی او زړونه يي د الله تعالى په ياد آراميږي ، خبر شئ چې د الله پاک په ياد زړونه ډاډمن کيږي.

او کله چې انسان د ديني تعليم او وعظ نه لري پاتي وي ، په هغه باندې شيطان تسلط پيدا کوي او په غفلت کې يې غورځوي او همدارنګه د ټولنې او محيط د فتنو او منکراتو او حرامو کارونو تر تأثير لاندې راځي ، زړه يې په فتنه کې اخته کيږي چې بيا ورته نيک کار او بد کار څه ارزښت نلري ، د حق او باطل تر منځ فرق نشی کولای بس يوازې د اسلام او مسلمان نوم ورپاتې وي .

دوهم فصل

## د امامت اهمیت او منزلت

امامت لوی منزلت او عظیم واجب دی چې لوی فضیلت لري ، خپله جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم او خلفاء راشدینو امامت کړی دی .

رسول الله صلی الله علیه وسلم امام او مؤذن ته داسې دعا کړې ده .

«اللهم أرشد الأئمة ، واغفر للمؤذنين» (رواه أبو داود و صحيح ابن خزيمه).

ژباړه : ای الله ! امامانو ته لارښوونه او هدایت وکړې او آذان کوونکي وبخښې .

## د امامت فقه

١- په امامت کې اخلاص نیت.

٢- د امامت او لمانځه ټولو احکامو او مسائلو ته پوره توجه کول ، لکه قرآئت ، په اطمنان د لمانځه ټول ارکان او واجبات لکه : قیام ، رکوع ، سجده ، او په پوره سکون او اطمنان سره قومه او جلسه ادا کول ، ځکه چې امام قدوه او نمونه وي کچیرې د امام لمونځ غلط شو ، د ټولو د لمانځه په غلطۍ کې به شریک وي ، او که د امام لمونځ غلط وي نو مقتدیان به د ده په تقلید یوازې او منفرد لمونځ هم غلط ادا کوي.

٣- په لمانځه کې ټولو سنتو او آدابو ته توجه کول ، صفونه برابرول ، په

لمانځه کې مسنونه قرائت ، نه بیړه او نه هم د لمانځه ډیر اوږدول ، د لمانځه وروسته اذکار او نور آداب مراعاتول . ځکه چې امام قدوه دی.

۴ -په متقدیان پورې چې کوم احکام اړه لري هغوی ته یې بیانول ، لکه: د امام متابعت ، د امام څخه مخکې او یا وروسته رکوع ، سجدې نه تلل ، دوهم صف د امام په برابر جوړول او نور.

**د امامت آداب**

۱- پخپل دنده باندې د مواظبت حرص لرل.

۲- د بد ګمانی څخه ځان ساتل ، د خلکو په قیل او قال او خبرو به بد ګماني نه کوي ځکه امام اکثراً د جومات په حجره کې وي او د خلکو خبرې اروي نو د چا په خبرو به بد ګماني نه کوي چې کیدای شي دا خبرې زما په باره کې کوي.

۳ -کچیرې امام ته کوم عذر پیښ شي چیرې په سفر ځي نو باید خپل نائب وټاکي تر څو د خلکو په جماعت کې خلل رانشي.

۴- د لمانځه وختونو ته پوره توجه کول او د خپل وخت څخه مخکې یا وروسته کولو څخه پرهیز کول ځکه لمونځ په ټاکلو وختونو فرض کړ شوی دی او د لمانځه لپاره مستحب وخت په نظر کې نیول.

۵- د داسې مؤذن انتخاب چې د لمانځه په وخت عالم وي او سم د وخت د داخلیدو سره اذان وکړي او همدارنګه د جماعت په ورکولو قادر وي.

۶- د ډیرو ارتباطاتو څخه پرهیز کول ځکه چې دا کار په امامت کې د خلل د پیدا کیدو سبب کیږي.

۷- غوره اخلاق ځکه امام د خلکو په مینځ کې قدوه او نمونه وي.

۸- د خلکو په مینځ کې اصلاح کول ، هیڅ داسې کلی او سیمه نشته چې په هغه کې به مشکلات پیښ نشي نو امام به د خلکو په اصلاح او جنجال حل کولو کې ډیر حریص وي ځکه چې (إصلاح ذات البين) زیات اجر لري او ددې په وسیله د مسلمانان ستر مشکلات حل کیږي.

۹- امام د کلي د رعیت پر وړاندې مسئول دی خلکو ته به په ښو کارونو أمر کوي او له بدو کارونو څخه به یې منع کوي او د کلی خلکو ته به دین رسوي.

۱۰ - خلکو ته د جماعت او جُمعې په لمانځه ډیر تأکید کول هغوی ته د جماعت او جُمعې د لمانځه اهمیت او فضیلت بیانول او د جماعت د ترک کولو وعیدونه بیانول ، او ترک کوونکی ته فردي دعوت ورکول.

۱۱ - د حجاج او عمره کوونکو د قابلې انتظام هغوی ته د احکامو او مناسکو لارښوونه کول.

۱۲ - د دعوت په موسم کې د دین رسولو ته ډیره توجه کول لکه : رمضان المبارک ، د حج ورځې او نور.

۱۳ - د متقاعدینو ( هغه کسان چې دندې نلري) د هغوی څخه د جومات د انتظام او د کلي په چارو کې کار اخیستل.

۱۴- د جومات او کلي د انتظام لپاره د یوې شوری جوړول.

۱۵- د میلمنو اکرام کول او د هغوی سره داسي معامله چي د دین او کلي په خیر وي.

۱۶- د مریضانو پوښتنه.

۱۷ - خلک ټولنیزو مسئولیتونو ته متوجه کول لکه :أمر بالمعروف او نهی عن المنکر ، د کورنۍ مسئولیت ته د اولیاؤ متوجه کول، د لارې جوړول ، د لارې حقوق ، د ګاونډې حقوق ، نورو ته د ضرر او زیان اړولو خطرناکې پایلې ، د مسلمان په تکفین او جنازه کې کډون کول ، د بې وسه او فقیر سره مرسته کول او داسې نور.

۱۸- د کلي د مسئولینو او تجارو تر مینځ ارتباط او هغوی انفاق ته هڅول او د مال څخه یې د دعوت په چارو کې کار اخیستل.

(المصدر : موقع المسلم )

**مسلمان خطیب ته**

امام او مسلمان خطیب ته په څو مهمو  او بنسټیزو ټکو وصیت .

**اول – اخلاص نیت:**

ای مسلمان خطیبه !پوه شه چې تاته ستر رسالت سپارل شوی دی نو خپل دغه رسالت په صدق او اخلاص سره ادا کړه، د خپل وس موافق به کوښښ کوې چې په داسې شان يې ادا کړې چې د الله تعالی د رضا سبب شي او نور ته يې په ثقه ټوګه ورسوې او ستا قصد او نیت یوازې د الله تعالی رضا وي ځکه چې د هر عمل قبلېدل په نیت پورې اړه لري:

جناب رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي:  «إنما الأعمال بالنيات وإنما لكل امرئ ما نوى» (البخاري ).

ژباړه: د ټولو عملونو قبلېدل په نیت پورې اړه لري، انسان ته د ده د نیت موافق ثواب او بدله ورکول کیږي.

**دوهم- د مسئولیت ادا کول:**

امام او خطیب د جومات او په جومات کې د جماعت د قیام ، جماعت ته د خلکو رابللو ، د محلې خلکو ته د دین رسولو او د لمانځه د اداکولو په باره کې د خلکو پر وړاندې مسئول دی.

جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي :«كُلُّكُمْ رَاعٍ وَكُلُّكُمْ مَسْئُولٌ عَنْ رَعِيَّتِهِ » (رواه البخاري).

ژباړه: هر يو د تاسې راعی (شپون) دی او هر يو د تاسې د خپل رعيت (لاس لاندې کسانو ) په برخه کې مسئول دي.

راعي هغه ساتونکي ته وايي چې د خپلو ماتحتو ساتنه ور په غاړه وي لکه: امامت، اداره ،ټولګی ،کورنۍ او نور او د ساتنې څخه دلته مطلب د عدل او مصالحو قيام دی.

ابن عدي په صحيح روايت له انس رضی الله عنه څخه روايت کړی چې:

«إِنَّ اللَّه سَائِل كُلّ رَاعٍ عَمَّا اِسْتَرْعَاهُ حَفِظَ ذَلِكَ أَوْ ضَيَّعَهُ».

ژباړه: يقيناً الله تعالی د هر شپونکي، هر مسئول نه د خپل مسئوليت په باره کې پوښتنه کوي چې د هغه ساتنه يې کړې او که يې هغه ضايع کړی دی.

**دريم – په نيکۍ امرکول اوله بدی څخه منع کول :**

أمر بالمعروف او نهی عن المنکر د هر مؤمن او په خاصه توګه عالم او خطيب لپاره کلکه اسلامي فريضه ده او دا د مؤمنانو هغه صفت دی چې له منافقانو څخه يې جلا کوي.

لقوله سبحانه وتعالی :[وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاء بَعْضٍ يَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ ..] (التوبه ٧١ ).

ژباړه: او مؤمنان سړي او مؤمناني ښځې ځينې د ځينو نورو دوستان دي امر کوي په نيکۍ او له بديو نه خلک منع کوي.

[الْمُنَـافِقُونَ وَالْمُنَافِقَـاتُ بَعْضُـهُم مِّـن بَعْـضٍ يَـأْمُرُونَ بِـالْمُنكَرِ وَيَنْهَـوْنَ عَـنِ الْمَعْرُوفِ...] (التوبه ٦٧ ).

ژباړه: منافقان سړي او منافقاني ښځې ځيني لـه ځينـو نـورو نه ،هغوی د بدی په لور بلنه کوي او له نيکۍ څخه منع کوي.

هيڅ مؤمن نجات نشي موندلای څو پورې چې د دغه مسئوليت احساس ونه کړي .

الله سبحانه وتعالى فرمايي :[وَالْعَصْرِ * إِنَّ الْإِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ] ( قسم دی په زمانه يقيناً ټول انسانان په زيان او خسران کې دي).

مګر يـوازې هغـه کسـان کاميـاب دي چې څلـور صـفات ولـري او دا څلـور دورې ټولې پوره کړي :

[إِلَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَتَوَاصَوْا بِالْحَقِّ وَتَوَاصَوْا بِالصَّبْرِ ] (العصر ١-٣).

ژباړه: پرته له هغو کسان چې ايمان راوړی او نيک عملونه يې کړي وي او يو تر بله يې وصيت کړی وي په حق سره او وصيت يې کړی وي په صبر سره.

**څلورم - علم او بصيرت:**

د هر امام ، خطيب او داعي لپاره علم شرط دی، دومره علم چې د امامت ، او د دين په ضروري احکام پوه او حاکميت ولري.

الله سبحانه وتعالی فرمايي: [قُلْ هَـذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللّهِ عَلَى بَصِيرَةٍ ] (يوسف :١٠٨ ).

ژباړه:وو ايه: دا زما لاره ده، د الله طرف ته بلنه کوم، په ښه بيان او بصيرت سره.

{عَلَى بَصِيرَةٍ } شامل دی دريو امورو لره:

١- داعي چې کوم شي ته خلک رابولي د هغه په حکم به عالم وي ، کچيرې يو شی پخپل ظن او ګمان هغه ته واجب ښکاري مګر په شرع کې واجب نه وي نو د الله تعالی په بنده ګانو باندې به د هغه څه الزام کوي کوم چې الله تعالی پخپلو بنده ګانو د هغه الزام نه وي کړی ، او کچيرې هغه پخپل ظن او ګمان خلک د يو شي څخه منع کوي مګر په شريعت کې حرام نه وي نو د الله تعالی پر بنده ګانو به يې حلال حرام کړي وي.

٢ -داعي به د مخاطب او يا هغه ډله او قوم په عقيده او احوالو پوه او عالم وي کوم ته چې دی دعوت ورکوي ، رسول الله صلی الله عليه وسلم چې کله معاذ رضی الله عنه يمن ته ليږلو نو هغه ته يې وفرمايل :«انک ستأتي قوم أهل الكتاب » (البخاري).

٣ -د دعوت ورکولو په طريقه او منهج به عالم وي، لقوله سبحانه وتعالی :[ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ] (النحل ١٢٥).

ژباړه: بلنه کوه لیاری د رب خپل ته په حکمت او ښکلي نصیحت سره او له دوی سره په هغې طریقې سره مجادله (مباحثه) کوه چې هغه تر ټولو ښه وي.

او کچېرې د انسان سره علم نه وي نو لومړی دې ځان پوه کړي او بیا دې نورو ته دعوت ورکړي ، د علم د پاره دا شرط نه دی چې سړی بحر وي بلکې د خپل وس موافق به لومړی په یوه مسئله او حکم ځان پوهوي او بیا به یې نورو ته رسوي (بلغو عني ولو ایه ).

**پنځم - د امام او خطیب وینا به له عمل سره موافقه وي:**

مسلمان خطیبه ! ته پخپل قول ، عمل ، سلوک ، هیئت کې د نورو لپاره ښه نمونه قدوه شه ، پوه شه چې تا ته په دې کار سره لوی اجر دی.

رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي : «من دعا إلى هدى، كان له من الأجر مثل أجور من تبعه..» (رواه مسلم).

ژباړه : چا چې د نیکۍ طرف ته دعوت ورکړو ، نو ده لره به د عمل کوونکو په مثل اجر او ثواب وي .

او پوه شه چې خلک ستا اعمال ، ستا اقوال او ستا سلوک څارې او د هغه تقلید کوي . خپل اقوال له اعمالو او سلوک سره موافق کړه ، ستا وینا هغه وخت پر خلکو تأثیر کوي چې خپله دې عمل وربانديې کړی وي.

د علم شرعي څخه اصلي مطلب عمل دی داعي خطیب باید پخپله وینا عمل ولري.

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آَمَنُوا لِمَ تَقُولُونَ مَا لاَ تَفْعَلُونَ * كَبُرَ مَقْتًا عِندَ اللَّهِ أَن تَقُولُوا مَا لاَ تَفْعَلُونَ] (الصف :٢-٣ ).

ژباړه: اى مؤمنانو هغه څه ولى وايئ چې نه يې کوئ، د الله پر وړاندې دا ډېره د قهر او کينې خبره ده چې: هغه څه ووايئ چې کوئ يې نه.

د رسول صلى الله عليه وسلم څخه دغه دعا روايت شوې: « اللهم إني أعوذ بك من علم لا ينفع».

ژباړه: اى الله زه پر تا باندې پناه غواړم له هغه علم چې بې ګټې وي .

امام شافعي رحمه الله وايي" :ليس العلمُ ما حفظ، ولكنَّ العلم ما نفع."

يعنې: علم هغه نه دى کوم چې ياد شوى وي بلکي علم هغه دى چې نفع رسونکى وي.

**شپږم- په دليل او حقائقو ولاړه وينا:**

اى د حق آواز اوچتوونکيه ! کومه موضوع چې بيانوې په هغه لومړى خپل ځان ښه پوه کړه ، په مهربانه او ښه لهجه يې خلکو ته بيان کړه.

اى خطيبه ! د ديني او دنيوي قضايوو په اړه چې تاته پوره علم نه وي هغه مه وايه ، ستا وينا بايد په دليل بناء وي ته بايد حقائق بيان کړې په هغه څه کې خبرې مه کوه چې تاته يې پوهه نه وي يا تاته مشکل وي ، د تحقيق پرته د چا وينا ته اعتبار مه ورکوه.

الله سبحانه وتعالى فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِن جَاءكُمْ فَاسِقٌ بِنَبَأٍ فَتَبَيَّنُوا أَن تُصِيبُوا قَوْمًا بِجَهَالَةٍ فَتُصْبِحُوا عَلَى مَا فَعَلْتُمْ نَادِمِينَ]

(الحجرات :۶).

ژباړه: ای مؤمنانو! که تاسو ته کوم فاسق (بدکار کس) خبر راوړي، نو تاسو ښه تحقیق کوئ، په دې چې تاسو به یو قوم ته په ناخبري سره تکلیف ورسوئ، بیا به تاسو په خپلو کړو باندې پښېمانه شئ.

او د حق په بیانولو کې یوازې له الله تعالی څخه ووېرېږه!

ځکه کوم عالم ته چې د حق علم وي او دی هغه پټوي نو هغه ته به د قیامت په ورځ د اور قیزه ور واچولی شي.

په حدیث شریف راغلي : « مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهُ ثُمَ كَتَمَهُ أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَّارٍ » (سنن الترمذی ۲۶۴۹، الترغیب و الترهیب ۱/۹۷).

ژباړه: څوک چه دیوه عالم نه پوښتنه وکړي او ده ته د هغه علم وي او هغه پټ کړی د قیامت په ورځ به یې په خوله کښې د اور قیزه ور واچوله شي .

**اووم- د شرعي منهج موافق دعوت:**

ای هغه کسه چې د خلکو او ټولنې د اصلاح کوښښ کوې ! د هغه کس لپاره چې د فساد په زمانه کې د خلکو د اصلاح کوښښ کوي لوی اجر دی.

جناب رسول صلی الله علیه وسلم فرمایلي:«بَدَأَ الْإِسْلاَمُ غَرِيبًا ثُمَّ يَعُودُ غَرِيبًا كَمَا بَدَأَ فَطُوبَى لِلْغُرَبَاءِ» قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! وَمَنْ الْغُرَبَاءُ؟ قَالَ : »الَّذِينَ يُصْلِحُونَ إِذَا فَسَدَ النَّاسُ» (رواه أحمد والترمذی- السلسلة الصحيحة ).

یعنې : اسلام بې کسه او غریب شروع شوي دی او بیا به بي کسه او غریب شي لکه څنګه چه شروع شوی ؤ پس طوبی ( خوشحالي ، اکرام ، لوی خیر او جنت دی) لپاره د غریبانو – چا پوښتنه وکړه یا رسول الله ! غریبان کوم کسان دي؟ هغوی صلی الله علیه وسلم وفرمایل : هغه کسان دي چه د فتنو او فساد په وخت کې د خلکو د اصلاح کوښښ کوي.

خو دا په پام کې ولره چې ته د الله تعالی لارې ته بلونکی یې ، دا لاره د پیغمبران علیهم السلام لاره ده ، دا لاره د جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم لاره ده ، نو باید چې دعوت د هغه په منهج او طریقه برابر وي.

ستا دعوت به په حکمت او ښه موعظت سره وي.

:لقوله سبحانه وتعالی :[ادْعُ إِلِى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُم بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ] (النحل ١٢٥).

ژباړه : بلنه کوه لیاری د رب خپل ته په حکمت او ښکلي نصیحت سره او له دوی سره په هغې طریقې سره مجادله (مباحثه) کوه چې هغه تر ټولو ښه وي.

د څه نه چې خلک نا خبره وي هغوی به ورخخه خبروې ، د څه څخه چې غافله وي هغه ته به یې متوجه کوې ، د حال او وخت مناسب بیان به ورته کوې ، ستا بیان به د خلکو د سوېې سره سم واضح او ساده وي . ابن مسعود رضی الله عنه روایت کوي چې جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي:

«ما أنت بمُحدثٍ قوماً حديثاً لا تبلُغُهُ عقولهم ، إلا كان لبعضهم فتنةً » (رواه مسلم).

يعني: كه ته قوم ته داسې وينا وكړې چې د هغوى عقل او فهم ور ونه رسيږي نو د ځينې د پاره به (دا مبهمه وينا) فتنه جوړه شي.

همدارنګه په خطبه کې څو مسنونه صفات په نظر کې ونيسه لکه:

د خطبې اوږدول پکار نه دي ،او د موضوع دومره تکرار په کار نه دی چې خلک د خستګۍ احساس وکړي ، د اوريدو د مطلوب حد څخه زيات اوچت يا ټيټ صوت ، او د زياتو اشارو او حرکاتو نه ځان ساتل ، د کبر او غرر او د خلکو د تحقير څخه ځان ساتل.

أسأل الله الكريم ، رب العرش العظيم ، أن يوفقنا جميعاً لصالح القول ، وجميل العمل ، وأن يُجنبنا الخطأ والزلل ، والحمد لله رب العالمين.

(من رسائل :الدكتور / صالح بن علي أبو عرَّاد )

دريم فصل

## د وعظ احکام او آداب

وعظ د الله تعالی لورې ته د بلنې يو عظيم باب دی ، او خلک هغه ته زيات احتياج لري ځکه اوس عصر کې اکثره خلک د دنيا کارونو مصروف کړي دي او د آخرت څخه يې غافله کړي دي.

د وعظ له لارې کلک او سخت زړونه نرميږي ، غافله خلک بيداريږي ، د ضعيف ايمان واله خلکو ايمان قوي کيږي ، په زړه کې يې د شرائع الله او ښو اعمالو مينه او شوق پيدا کيږي او له بدو کارونو يې کرکه پيدا کيږي.

پس واعظ خلک د الله لورې ته بولي ، زړونه ژوندې کوي او د شيطان له مکر څخه خلک خبروي.

ځکه چې وعظ ، ذکر او بيان مسلمانانو ته ګټه رسوي د هغوی زړونه روښانه ساتي .

## د وعظ فوائد او ګټې

۱- د فسق او ګناهونو د وعيدونو په بيانولو سره خلک د ګناهونو څخه منع کول.

۲-  د اعمالو د فضائلو په بيانولو سره خلک نيکو کارونو ته تشويق او ترغيب.

۳- د غافله خلکو بيدارول.

۴- د ايمان تجديد او د نفسونو تحريک.

۵- د اسلام په مسقيمه لاره ثابت پاتې کيدل.

۶- خلکو ته د خپل رب او خالق ورپيژندل.

۷- خلک اسلامي شعائرو او حدودو ته متوجه کول.

۸- د انسي او جني شيطانانو د مکر څخه د خلکو خبرول.

**د وعظ آداب**

۱- واغظ به پخپل وعظ کې مخلص وي.

۲- واعظ به په هغه څه باندې عالم وي د څه چې وعظ کوي.

علي رضي الله عنه په يو واعظ تير شو چې خلکو ته يې وعظ کولو (داسې آيت او حديث يې بيانولو چې هغه منسوخ وو) هغه واعظ ته يې وويل : آيا ته په ناسخ او منسوخ پوهيږې ، هغه وويل : نه ، ويې ويل : هلکت.

۳ -د خلکو په اذيت به صبر کوي.

۴ -څه چې خلکو ته وايي په هغه باندې به خپله عمل کوي.

۵ -د خلکو د سويې موافق به بيان کوي ، فصيح او واضح.

۶ -د سنتو به پوره پابند وي.

۷ -وعظ به د کتاب الله ، سنت رسول الله او د موثقو علماؤ د اقوالو موافق وي.

۸ -په وعظ کې به د اسلامي شريعت منهج او طريقه په نظر کې نيسی ، په نيکه او ښه طريقه به خلک د الله تعالی لورې ته بولي ، يوازې په نيکۍ سره به أمر نه کوي بلکي خلکو ته په نيکو کارونو أمر کوي او له بدو کارونو

ځخه به خلک منع کوي ، په وعظ کې به يوازې د عذابونو بيان نه وي تر څو خلک د الله د رحمت څخه نا هيلي شي ، او يوازې به ترغيب نه بيانوي تر څو خلک د الله تعالى د وېرې څخه غافله شي بلکي په وعظ کې به ترهيب او ترغيب دواړه په نظر کې نيسي.

**په وعظ کې ځينې خپرې شوې خطاوې**

١- په نا مناسب وخت کې خلکو ته وعظ کول ، لکه : د شديد باران ، شديد يخ ، شديد توپان په وخت کې ، او همداسې په نا مناسب مکان او ځای کې.

٢ -په لنډ وخت کې د يوې موضوع ډير او بار بار تکرارول.

٣ -د ضرورت پرته د وعظ اوږدول.

۴ -د منکر او موضوع احاديث بيانول.

۵ -په مثالونو کې ډيره مبالغه کول.

۶ -د نادره او غريبو قيصو بيانول او په هغه کې مبالغه کول.

٧ -د يوې موضوع څخه په بېړه بلې موضوع ته تلل چې په دې سره د اورېدونکو فکر ګډوډيږي او په موضوع يې صحي سر نه خلاصيږي.

٨ -د اوريدونکو تحقيرول ، د هغوی د زړونو داغول او خلک وربانديې خندول او خپل ځان لوی ګڼل او هغوی ضعيف العقل ګڼل.

٩ -د فواحش او منکراتو په ذکر او بيان کې ډيره مبالغه کول.

۱۰ -په لوړه سویه بیان او وعظ کول چې د خلکو د سویې سره مناسب نه وي.

۱۱ -علماؤ او حاکمانو ته طعن ، فحش او ښکنځل کول ( حال دا چې په اسلام کې فحش او ښنځل حرام دي).

۱۲ -د الله تعالی لورې ته د دعوت پر ځای خپل شهرت او منزلت ته د خلکو بلل.

(رساله : خالد سعود البليهد- عضو الجمعية العلمية السعودية للسنة)

## د منبر او خطبې مسنونه آداب

۱- جناب نبی صلی الله علیه وسلم به په ولاړه خطبه لوستله.

الله سبحانه وتعالی فرمایي : { وَإِذَا رَأَوْا تِجَارَةً أَوْ لَهْوًا انفَضُّوا إِلَيْهَا وَتَرَكُوكَ قَائِمًا.. } (الجمعة ).

ژباړه: او کله چې دوی تجارت (سوداګري)، یا تماشه ولیدله (نو) دوی هغې ته خواره شول او ته يې ولاړ پرېښودلې.

ابن کثیر رحمه الله وایي چې {وترکوك قائماً} دلیل دی په دې سره چې امام به په ولاړه خطبه وایي.

۲- نبی صلی الله علیه وسلم به په منبر باندې خطبه ویله او منبر لوړ شي ته وايي ، د منبر د جوړولو حکم رسول الله صلی الله علیه وسلم کړی ؤ ، منبر به د محراب ښي لوري ته وي.

۳- د رسول الله صلى الله عليه وسلم منبر درى طبقې لرلې ، جناب به په دوهمه طبقه خطبه ويله او په دريمه کيناستلو ، په دليل د دغه حديث : «فصنع له منبر له درجتان ويقعد على الثالثة» [رواه الدارمي (25/1) و ابو يعلي (142/5)].

او منبر به دومره مخکې نه وي چې د لمانځه صف قطع کړي ،

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «من وصل صفاً وصله الله ومن قطع صفاً قطعه الله عز وجل» (رواه النسائى:۹۳/۲).

۴- رسول الله صلى الله عليه وسلم به د خطبې پر مهال خپل مخ د خلکو طرف کړی وو.

۵- د خطبې شروع کول په حمد ،ثنا ، شهادتين او درود سره، د دواړو خطبو په مينځ کې کيناستل.

۶- خطبې ته غوږ نيول د خبرو ، نفلي لمونځونو او سلام اچول او ځواب ورکول منع دي.

۷- د امام لپاره په همسا باندې تکيه کول ، ځکه جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم به د خطبې پر مهال په همسا سره تکيه کوله.

۸- د دواړو خطبو لنډول همدارنګه د لومړۍ خطبې څخه دوهمه خطبه لنډول او د لمانځه اوږدول.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي : «أطيلوا الصلاة وأقصروا الخطبة» (رواه مسلم).

۹- جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم به د دوو خطبو په مینځ کې کیناستلو ، د حاجت پر مهال به یې خطبه قطع کوله ، او په خطبه کې به یې په سبابه ګوته سره اشاره کوله.

۱۰- جناب نبی صلی الله علیه وسلم به چې کله په منبر ودرید سلام به یې اچولو (رواه ابن ابي شیبة /114/2 بإسناد حسن).

## په جومات کې د دعوت الی الله وسائل او افکار

۱- د فرضي لمانځه وروسته د وغظ د څو کلماتو بیانول.

۲- په اونۍ ، میاشت یا فصل کې د بیان او وعظ غونډه جوړول.

۳- د اوږد مهاله او لنډ مهاله درسي حلقاتو جوړول ، د آذان او اقامت تر مینځ ، یا د ماښام او ماسختن تر مینځ.

۴- د علمي سیمنارونو جوړول.

۵- د کتابونو او رسالو د توزیع د پاره د یو صندوق جوړول.

۶- د اهل خیر په مرسته د جومات لپاره عامه کتابتون جوړول.

۷- د خلکو لپاره علمي مسابقات په لاره اچول خاصتاً په رخصتیو کې.

۸- د لویانو او کوچنیانو لپاره د قرآن د زده کړې او حفظ حلقات جوړول.

۹-د جماعت کډونوالو ته د کتاب څخه څو کرښې بیانول.

۱۰- د با استعداد کسانو هڅول او د هغوی څخه په کلي کې د دعوت په چارو کې استفاده کول.

۱۱- د فقراء او مساکینو د حال څخه ځان خبرول او د هغوی حال د اغنیاوو او خیریه مؤسستاتو سره شریکول.

۱۲- د کلي د مشرانو په مرسته د خلکو په مینځ کې د اصلاح کوښښ او هڅې.

۱۳-کله کله د جومات امام د څو تنو په ملتیا د لمونځ کوونکو کورونو ته د ملاقاتو او پوښتنې لپاره ورتلل.

۱۴- د جماعت ترک کوونکو سره ملاقات او د هغوی هڅول جومات ته.

۱۵-په جومات کې د پشنهاداتو او دیني پوښتنو لپاره د یو صندوق جوړول.

۱۶- په جومات کې د یوې تختې نصبول تر څو په هغه باندې مهمې فتواوې ، د علمي دورو اعلانات او نور نصب شي.

۱۷- امام به د خلکو سره ښه سلوک کوي ،ښه اخلاق به غوره کوې او د خلکو زړونه به لاس ته راوړي.

۱۸- فردي دعوت تر سره کول.

۱۹- نصیحت او أمر بالمعروف او نهی عن المنکر کول.

۲۰- د جُمعې د خطبې لپاره پوره تیاری نیول او د مناسبې موضوع انتخاب.

۲۱-د اهـــــل علـــــم د فتـــــاوی نشـــــرول.

۲۲- اسلام ته د غیر مسلم ګاونډې دعوتول.

۲۳- کلیوالو ته تأکید کول تر څو د خپلو اولادونو تربیت ته متوجه شي او خاصتاً د لمانځه په حصه کې خپل اهل او اولاد ته زیاته توجه وکړي او خپل ماشومان له جماعت سره عادت کړي.

۲۴- کلیوالو ته تأکید کول تر څو خپلو کورنیو ته دین ورسوي ، خپل اهل ، او لوڼې ښځینه مدرسې ته ولیږي او په کومو احکامو او مسائلو کې چې مشکل لري هغه له امام سره شریک کړي.

۲۵- د پوهنتون محصلین دعوت الی الله ته هڅول او د هغو څخه د کلي او جومات په خیریه چارو کې استفاده کول.

۲۶- د کلی د ماشومانو او اطفالو په زړه کې د جومات د محبت ځایول .او د هغوی سره رفق او نرمي کچیرې خطاء ورڅخه کیږي.

۲۷- د کلي خلک ټولنیزو حقوقو او آدابو ته متوجه کول.

۲۸- میاشتني غونډه او اجتماع د نږدې کلیو او ښار د خطیبانو ، علماؤ او امانانو تر مینځ د نظریاتو او تصمیماتو شریکولو لپاره.

۲۹- د جیدو علماؤ او داعیانو دعوتول جومات ته تر څو خلکو ته بیان او وعظ وکړي خلک یې د علم څخه استفاده وکړي او د هغوی د دینې پوښتنو ځوابونه ورکړي.

۳۰- د خطیبانو او امامانو د خطبو او بیانونو شریکول په انترنټ کې تر څو نور خلک استفاده ورڅخه وکړي.

۳۱-د دعوت، علمي او تربیوي پروګرام او تقسیم اوقات ترتیب.

۳۲- په ځينې مهمو ټولنيزو مسائلو کې د نورو امامانو او خطبانو سره مشـــــــــوره کــــــــول.

۳۳- جومات ته راتلونکو ماشومانو تشويق او ترغيب او هغوی ته څه انعمام ورکول تر څو د دوی له جومات او علم سره محبت پيدا شي.

۳۴- د معتکفينو (اعتکاف کوونکو) په انتظام کې مرسته کول.

۳۵- په رمضان المبارک کې د پشلمې او روژه ماتي د وختونو جدول برابرول .

۳۶- د ځينې پوسترو نشر لکه : د فضائل اعمال ، د رمضان استقبال ، يوم عرفه او نور.

۳۷- د امام لخوا د ځينې ميدانونو ، تجارتي ځايونو ليدنه کول او څښتنانو ته يې د فساد او منکر څخه د لريوالی نصيحت کول.

۳۸- د معاصرو بلاوو او آفتو څخه د خلکو ډير ډير وېرول لکه : موسيقي ، کفري ، شيطاني او فاحش سريالونه ، فلمونه او نور.

۳۹- د خلکو د عقائدو د تصحيح لپاره کوښښ.

۴۰- په ټولنه کې د ناوړه رواجونو ، بدعاتو ، شرکياتو په وړاندې په حکمت سره مقابله کول.

(مصدر: اعداد مرکز الدعوة و الارشاد بمکة المکرمه)

## په جومات او کلي کې د دارالحفاظ جوړول :

په جومات ، کلې او محله کې د ديني زده کړو د مدرسې او دارالحفاظ جوړول ستر خير دی هر چا چې ددې کار اقدام وکړ د هغه د پاره به د جاريه صدقې اجر وي ، په جومات او کلي کې د مدرسې او دارالحفاظ جوړول د کلي په امام او مشرانو باندې يو ديني واجب او مسئوليت دی ، ځکه پر والدينو باندې واجب ده چې خپلو اولادونو ته قرآن او ضروري شرعي علم زده کړي.

## د مدرسې او دارالحفاظ جوړولو آسانه لاره

١ -لومړی به په علم قرائت کې رسيدلی حافظ او يا قاري چې د قرآن په قرائت او علم تجويد پوره پوره حاکميت ولري پيدا کړي ، ځکه چې اطفالو ته په پيل کې صحيح تلفظ وښيي کچيرې په شروع کې تلفظ يا احکام غلط زده کړي نو بيا د هغه اصلاح مشکله ده ، داسې قاري چې د علم قرائت تر څنګ عالم هم وي او تقوی داره سړی وي.

٢ -په دوهم قدم کې به د قاري لپاره اجرت يا مياشتنی معاش تعين کړي.

٣ -بيا به په کلی کې د خير خواه تجار او مالدار کس په لټه کې شي چې آيا هغه د نومړي معاش يا د معاش څه حصه ادا کولای شي؟

٤ -کچيرې د انفاق لپاره څوک پيدا نشول چې د قاري معاش په غاړه واخلي ، نو د قاري معاش به په زده کوونکو تقسيم کړي هر زده کوونکی ته به مثلاً د مياشتې (150-100) پيسې رسيږي چې مقدار يې د زده کوونکو

په شمیر پورې اړه لري ، کیدای شي په لومړیو میاشتو کې معاش کم شي یا څه وځنډیږي نو د کلي مشرانو ته پکار ده چې کومک او قرضه ورسره وکړي څو دارالحفاظ په خپلو پښو ودریږي.

د جومات امام به خلکو ته تشویق او ترغیب ورکوي چې د خپلو بچیانو اجرت یا پیس به په ټاکلي وخت سپاري او په دې باره کې به سختي او بخل نه کوي ، ځکه دا لږې پیسې دي کچیرې تاسې په ټوله میاشت کې د یو چاښت ښه خوراک پر ځای متوسط خوراک وکړئ نو دغه پیسې به درته پاتې شي.

۵ -کچیرې د زده کوونکو تعداد زیات وي یا زیات شي نو د قاري صاحبانو تعداد به هم ورسره زیاتیږي ، چې زیادت یې د درس په ښه کیفیت او د زده کوونکو سره په ښه سلوک پورې اړه لري.

کچیرې د جنکو د پاره جلا ځای نه وي نو د هلکانو او جنکو تر مینځ به پرده نصبه کړي.

## په مدارسو او مکاتبو کې د خیر د خپرولو طریقه

۱ -د تربیوي غونډو جوړول ، یا د ځینې مناسباتو د غونډو څخه استفاده او د یوې مناسبې موضوع ټاکل.

۲ -د لمانځه د ادا کولو وروسته د معلم یا متعلم لخوا د څو لنډو کلمو لوستل چې اوږدې نه وي ، او عنوانونه یې په ورځني یا میاشتنې شکل ترتیب شوي وي.

۳ -د سهارنی لین درېدولو څخه اعظیمي استفاده کول.

۴ -د خیر خپرول ، په زده کوونکو باندې د کتابونو ، رسالو او یا لنډو مطالبو ویشل چې مهم موضوعات پکې بیان شوي وي لکه : لمونځ ، بر الوالدین ، اسلامي حجاب او نور.

او یا هم په موسمي وختونو کې لکه : عاشوراء ، رمضان المبارک ، عرفه ، اخترونو کې د مناسبو موضوعاتو ویشل.

۵ -د مسابقاتو په لاره اچول لکه:

د قرآنکریم مسابقه.

د سیرت نبی مسابقه.

د مسنونه اذکارو یادولو او آدابو مسابقه.

۶ -په مدرسه کې د ویدیو ، صوت او الکتروني وسائلو په وسیله د خیر خپرول چې په څو دقیقو کې تر زیاتو کسانو مهم مطلب رسیږي.

۷ -د طلابو لیدنه کول له علماؤ ، کتابتون ، د اسلامي دعوت مرکز ، او یا په مخدره موادو د اخته کسانو د خطرناکو پایلو څخه لیدنه او عبرت اخیستل.

۸ -په مدرسه او مکتب کې د عامه کتابتون موجودیت.

۹ -په یوه تخته باندې د مسنونه اذکارو لیکل لکه : د سورلی دعا ، د خوراک د شروع او پای دعا او نور ، تر څو زده کوونکو ته آسانه او ورباندې عادت شي.

۱۰ -په مکاتبو کې د علمي دورو پرانیستل لکه : د علم تجوید دوره ، د لمونځ د عملي طریقې دوره او نور.

۱۱ -زده کوونکي له نفلي لمونځونو سره عادت کول ، مثلاً د قرآنکریم په دوره کې د زده کوونکو اودسونه وي یا هغوی ته د اودس لپاره وخت ورکول ، او بیا هغوی ته د اشراق د نفلي لمانځه د ادا کولو لپاره وخت ورکول.

۱۲ -د زده کوونکو اولیاؤ ته د تنبه په توګه د ځینې مطالبو ور لیږل لکه : د اولاد د تربیت اهمیت ، د خیر په لاره کې په اولاد باندې د انفاق اجر او ثواب.

۱۳-د عصري بلاوو او آفاتو په اړه د خطر اعلانات لکه : د موسیقي اوریدل،دکفري او او شیطاني فلمونه او سریالونو او ګیم کتلو خطرناکي دیني ، اخلاقي ، اقتصادي ، علمي او بدني زیانونه.

۱۴ -د لوحو نصوبول او په هغه باندې د احادیث لیکل او وخت په وخت یې بدلول.

۱۵ -زده کوونکو ته د قصص انبیاء ، سیرت نبي ، سیرت صحابه او نورو مفیدو کتابونو ادرس ورکول ، د اسلامي انټرنټ پاڼو ادرس ورکول.

۱۶ -د معلم د فکر او ثقافت د روزنې لپاره د علمي حلقاتو پرانیستل.

۱۷ -زده کوونکي عامه خیریه کارونو ته تشویق کول لکه : د یتیمانو کفالت ، د والدینو سره مرسته کول ، د جومات په خدمت او بناء کې ونډه اخیستل ، لار ورکي ته لارښوونه کول ، د ګاونډې سره ښه سلوک ، چاته

ضرر نه رسول ، پنځه وخته لمونځ په جماعت ادا کول ، د میلمنو اکرام او عزت ، د خپلوانو پالل ، په نیکی أمر او له ناروا کارونو څخه منع کول.

(مقاله :إبراهیم الحمد ، من صید الفوائد)

**علماوو ته ستر مسئولیت متوجه دی**

**علم امانت دی :**

د شریعت علم امانت دی او د عالم دا مسئولیت دی چې هغه به ټول ضروري شرعي احکام په صحي توګه تر نورو پورې رسوي تولنه به د الهي اوامرو او نواهی څخه خبروي خلکو ته به په نیکی امر کوي او له بدو کارونو څخه به یې منع کوي .

نن عصر د رسالت او وحی سلسله ختمه شوی ده ، خلکو ته د دین رسولو او لارښوونې ټول مسئولیت علماؤ ته سپارل شوی دی .

لقوله سبحانه وتعالی : كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ (١١٠ ال عمران ) .

ژباړه: تاسو تر ټولو غوره امت یاست، چې د خلکو لپاره ایستلی شوي یئ، چې په نیکی حکم کوئ او له بدی نه مخنیوی کوئ

**د علماوو فضیلت:**

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لاَ يَعْلَمُونَ إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُوْلُوا الأَلْبَابِ (الزمر 9)

ووایه : هغه کسان چې پوهیږي او هغه کسان چې نه پوهیږي سره برابر دي ؟ بې شکه چې پوهان پند اخلي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي :

«مَنْ يُرِدِ اللَّهُ بِهِ خَيْرًا يُفَقِّهْهُ فِي الدِّينِ، وَإِنَّمَا أَنَا قَاسِمٌ وَاللَّهُ يُعْطِي، وَلَنْ تَزَالَ هَذِهِ الأُمَّةُ قَائِمَةً عَلَى أَمْرِ اللَّهِ لا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ» (3116 بخاري ) .

ژباړه: چاته چه الله پاک د خیر اراده وکړي نو په دین کښي پوهه ور په برخه کړي . ریشتیا ده چه زه یوازی ویشونکی یم ( د علم شریعت ) او الله پاک اصلي ورکونکي دي ، او دا امت به همداسې قایم او استوار وي او د مخالفانو مخالفت به دوی ته ضرر و نه رسوي تر هغه پورې څو قیامت شي .

مَنْ جَاءَهُ الْمَوْتُ وَهُوَ يَطْلُبُ الْعِلْمَ لِيُحْيِي بِهِ الاِ سْلاَمَ فَبَيْنَهُ وَ بَيْنَ النَّبِيِيْن دَرَجَةٌ وَاحِدَةٌ فِي الجَنَّةِ . (مشكاة المصابيح 240 اسناده مرسل)

ژباړه: چاته چه مرګ ورسیږي او هغه تر دې وخته پوري د علم په طلب او لټونه کښې وي چه د هغه په واسطه اسلام را ژوندي کړي د هغه او دپیغمبرانو په مینځ کې یوه درجه توپیر په جنت کې موجود وی .( هغه دنبوت درجه ده )

**د علماوو غفلت د ټولنې تباهي ده :**

د هر ولس او ټولنې علماء به په صفا او سپينو الفاظو خلکو ته حق بيانوي په حق بيانولو کې به د هيڅ چا خاطر نه کوي نه به له چا څخه شرميږي او نه به له چا څخه ويريږي ځکه چې د رښتنې ديني علماؤ دا صفت وي چې هغوی به يوازې له الله تعالی څخه ويريږي او له الله تعالی څخه به نور خلک ويروي .

لقوله سبحانه وتعالی : : ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ (فاطر: من الآية2) .

ژباړه : يقيناً د الله پاک څخه د هغه پوه بنده ګان ( چې د شريعت په احکامو پوه وي ) ويريږي.

په هر اندازه چې د يوې ټولنې علماء تقوا داره ، اصلاح کوونکي ، د مسئوليت احساسونکي او فعال وي په همغه اندازه به ټولنه له الله ( جل جلاله ) څخه ويرېدونکې له منکراتو پاکه او اصلاح وي .

**د حق پټولو خطرناکي پايلې :**

که د ټولنې علماء حق بيان نه کړي د خلکو اصلاح نه را ځي خلک د ګمراهی ګندې ته لويږي ځکه عام خلک اکثراً د ښو او بدو حلالو او حرامو فرق نشي کولای دوی د علماؤ پر وينا عمل کوي .

[إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَى مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ أُولَـئِكَ يَلعَنُهُمُ اللّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللاَّعِنُونَ ، إِلاَّ الَّـذِينَ تَابُواْ وَأَصْلَحُواْ وَبَيَّنُواْ فَأُوْلَئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ] (البقرة/١٥٩-١٦٠).

ژباړه : يقينًا کوم خلق چې هغه څه پټوي چې مونږ نازل کړي دي، چې هدايت او ښکاره دليلونه دي، له دې نه پس چې مونږ هغه په کتاب کې خلقو ته بيان کړي دي، دغه خلق (چې دي)، الله په دوی لعنت کوي اولعنت ويونکي په دوی لعنت وايي ، مګر هغه کسان چې توبه وباسي او (د ځان) اصلاح وکړي او (د حق) بيان وکړي، پس دغه کسان، زه د هغوی توبه قبلوم او زه ښه توبه قبلوونکی، بې حده رحم کوونکی يم.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي :«مَنْ سُئِلَ عَنْ عِلْمٍ عَلِمَهُ ثُمَ كَتَمَهُ أُلْجِمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِلِجَامٍ مِنْ نَارٍ » (سنن الترمذي ٢٦٤٩، الترغيب والترهيب ١/٩٧ ) .

ژباړه: څوک چه ديوه عالم نه پوښتنه وکړي او ده ته د هغه علم وي او هغه پټ کړی د قيامت په ورځ به يې په خوله کښې د اور قيزه ور واچوله شي .

او چا چې خپل قوم او ماتحت کسان غلطې لارې ته و بلل د هغوی ګناه به هم د ده پر غاړه وي :

له ابی هريره رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي: «من دعا إلى هدى، كان له من الأجر مثل أجور من تبعه، لا

ينقص ذلك من أجورهم شيئا. ومن دعا إلى ضلالة، كان عليه من الإثم مثل آثام من تبعه، لا ينقص ذلك من آثامهم شيئا».(مسلم 2674 ) .

ژباړه: چا چې د نيکۍ طرف ته دعوت ورکړو ، نو ده لره به د عمل کوونکو په مثل اجر او ثواب وي . او ددې نيک عمل کوونکو له عمله به هيڅ نه کميږي .او چاچې خلک د يوې ګمراهۍ او ګناه طرف ته دعوت کړل نو ددغې ګناه به هومره ګناه وي چې کوم ګناه کونکو دده د ګمراه کونکي عمل په وجه بې لارې شوي وي او ددغه خلکو په ګناه کې به هم کوم کمی نه راځي (رواه مسلم ) .

**د مسئوليت نه درک کول :**

له جابر رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :«اوحي الله عزوجل الي جبزئيل عليه السلام ان اقلِب مدينة كذا و كذا بِاهلِها فقال يا رب ان فيهم عبدك فلانا لم يعصك طرفة عين قال تعالي اقلِبها عليه و عليهم فان وجهه لم يتمعر في ساعة قطُّ» ( رواه البيهقي في شعب الايمان ).

ژباړه :الله تعالی جبرائيل عليه السلام ته حکم وکړ چه فلانی کلی سره له خپلې ټولې آبادۍ په بل مخ کړه ، جبرائيل عليه سلام عرض وکړ چې پدې کلي کې خو ستا فلانی بنده هم دی ، چې د سترګې د رپ په اندازه يې هم ستا نافرماني نده کړې، الله تعالی وفرمايل: چې دغه آبادي سره د دغه بنده په ټولو باندې واړوه ځکه چې د يو ساعت د پاره هم د دغه بنده مخ زما له

وجي متغير شوي ندی (د منکر په وړاندې يې حتی خپل تندی هم نه دی تريو کړی ) [البيهقی فی شعب الايمان] .

همدارنګه جناب رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي :

«مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ، وَذلِكَ أَضْعَفُ الإِيْمَان»(رواه مسلم).

ژباړه : د تاسې څخه چې څوک نا روا کار ووينې نو بايد هغه په لاس سره منع کړي ، کچيرې ددې توان ونه لري نو په ژبه او وينا سره دې هغه منع کړي ، او که په ژبه يې اصلاح نشو کړای نو په زړه کې دې د هغه څخه انکار او کرکه وکړي او دا ( د زړه په وسيله انکار او بد ګڼل ) ډير کمزوری ايمان دی.

همدارنګه رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي:«فَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِيَدِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِلِسَانِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَمَنْ جَاهَدَهُمْ بِقَلْبِهِ فَهُوَ مُؤْمِنٌ، وَلَيْسَ وَرَاءَ ذَلِكَ مِنَ الإِيمَانِ، حَبَّةُ خَرْدَلٍ» (أخرجه مسلم في الصحيح).

ژباړه: پس هر چا چې  په لاس سره جهاد وکړ هغه مؤمن دی ، او هر چا چې په ژبه د هغوی سره جهاد وکړ هغه مؤمن دی او هر چا چې په زړه سره د هغوی سره جهاد وکړ مؤمن دی ، وروسته له دې ( ددې درجې څخه تيټ ) کس کې د سپنلې د دانې قدر ايمان هم نشته.

## څلورم فصل

## د جماعت د لمانځه فضيلت

۱- په تياره کې جوماتونو ته تلونکو لپاره به د قيامت په ورځ نور وي .

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«بشّر المشّائين في الظلم إلى المساجد بالنور التامّ يوم القيامة» (ابؤداود ، ابن ماجه ).

ژباړه : هغو کسانو ته چه په تياره کې جوماتونو ته ځي زېرى ورکړئ په کامل نور سره په ورځ د قيامت (دغه جومات ته تګ به په ورځ د قيامت هغوى ته نور وګرځي).

۲- د سهار او بيګا د جماعت لمونځ ادا کول د ټولې شپې د نفلي عبادت برابر ثواب لري .

له عثمان بن عفان (رضى الله عنه ) نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايل :«من صلّى العشاء في جماعة فكأنّما قام نصف الليل، ومن صلّى الصبح في جماعة فكأنّما صلّى الليل كلّه» (مسلم ۶۵۶ )

ژباړه : څوک چه د نماسختن لمونځ په جَمع ادا کړي داسې دى لکه تر نمې شپې يې چه لمونځونه کړي وي اوڅوک چې د سهار لمونځ په جَمع ادا کړي داسې دى لکه ټوله شپه يې چې په لمونځ کولو سبا کړي وي ( د بيګا او سبا لمونځ په جمع ادا کولو ثواب د ټولې شپې له نفلي عبادت سره مساوي دى )

.

۳- کچېرې خلک د جماعت په فضیلت پوه شي نو حتماً به ځي جومات ته که څه هم په خاپوړو سره وي .

او أبوهريره (رضى الله عنه) روايت کوي چه رسول الله (صلى الله عليه وسلم) فرمايلي :«لو يعلمون ما في العتمة والصبح لأتوهما ولو حبواً» (متفق علِيه ).

ژباړه : که خلک پوهيدلی چې د بيګا او سبا په لمونځ کولو کې څومره ثواب دی دوی به جومات تللی اګر که په خاپوړو هم وای.

۴- د جوماتونو ته تلونکي کسان به د قيامت په ورځ د عرش تر سيورې لاندې وي .

د بخاري شريف په يوه حديث شريف کې راغلی : اوه کسان به د قيامت په ورځ د عرش تر سيورې لاندې وي د هغه ډلې يو هم هغه کس دی چې زړه يې له جومات سره تړلی وي «وَرَجُلٌ قَلبُه مُعَلّقٌ بِالمَسَاجِدِ» (رواه بخاری و مسلم ).

۵- څوک چې څلويښت ورځې تکبير اولی ونيسي هغه ته به د دوزخ او نفاق څخه نجات وي .

عن أَنَسِ بنِ مَالِكٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ :«مَنْ صَلَّى للهِ أَربَعينَ يَومَاً في جَمَاعَةٍ يُدْرِكُ التَّكْبيرَةَ الأُوَّلى كُتِبَ لَهُ بَرَاءَتَانِ: بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ، وَبَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ» (الترمذي).

ژباړه : چا چې څلويښت ورځې په اخلاص داسې لمونځ وکړ چې تکبير اُولی

ترې فوت نه شي هغه ته به دوه برائت (خلاصون يا نجات ) ورکړ شي يو د دوزخ څخه او بل د نفاق څخه.

۶- د جماعت لمونځ د يوازې لمانځه څخه پنځه ويشت درجې فضيلت لري .

«صَلاةُ الْجَمِيعِ تَزِيدُ عَلَى صَلاتِهِ فِي بَيْتِهِ وَصَلاتِهِ فِي سُوقِهِ خَمْسًا وَعِشْرِينَ دَرَجَةً» (بخارى ۲۹۵ ).

۷- جومات ته تلل د نورو مسلمانانو سره د ارتباط او محبت وسيله ده ،د اخوت او اسلامي ورورولۍ قوت دی.

**د جماعت د لمانځه د ترک کولو حکم**

د جَمعې لمونځ د اکثرو فقهاؤ په نزد واجب دی او تارک يې بغير له عذر څخه فاسق او ګناه کار دی .

لقوله سبحانه وتعالى:[ وَأَقِيمُواْ الصَّلاَةَ وَآتُواْ الزَّكَاةَ وَارْكَعُواْ مَعَ الرَّاكِعِينَ] (سوره البقره: ۴۳ ).

ژباړه : لمونځ قايموئ او زکات ورکوئ او رکوع کوئ سره له رکوع کونکو (سره له لمونځ کونکو ).

ان صلوة الجماعة واجبة على الراجح فى المذهب أو سنّة مؤكدة فى حكم الواجب كما فى البحر و صرحوا بفسق تاركها و تعزيره و أنه يأثم". (رد المحتار: ۳۳۷/۱، البحر الرائق: ۳۴۱/۱) .

## د جُمعې د لمانځه فضيلت او اهميت

د جُمعې لمونځ په هر عاقل ،بالغ ،آزاد ،مقيم ، نارينه او روغ مسلمان فرض دی ، او په نا بالغو،ناروغو ،ړندو ، مسافرو او ښځو باندې فرض نه دی ، لکن که وېې کړي نو د دوی د جُمعی لمونځ به وشي په دغه ورځ بيا د ماپښين لمونځ ته ضرورت نشته.

د جُمعې لمونځ د اسلام له سترو شعائرو څخه دی ددې له فرضيت نه منکر کافر دی او څوک يې چې پرته له څه عذر يوازې د سستۍ او بې پروايی له وجی دا لمونځ پرېږدي فاسق دی.

### د جُمعې د لمانځه فضيلت :

الله سبحانه وتعالی فرمايي:[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا نُودِي لِلصَّلاَةِ مِن يَوْمِ الْجُمُعَةِ فَاسْعَوْا إِلَى ذِكْرِ اللَّهِ وَذَرُوا الْبَيْع] (الجمعة: ٩ ).

ژباړه: مؤمنانو! کله چې د جُمعی په ورځ د لمانځه لپاره آذان وشي نو د الله پاک د ياد لپاره په بيړه ورځئ او اخيستل او خرڅول پرېږدئ.

په دغه لمانځه کې د بيړی د ورتګ حکم ځکه دی چې دا لمونځ پرته له جماعت څخه نه ادا کيږي او بل دا چې د نورو لمونځونو په شان قضايې هم نلري.

له ابی هريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي:«مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ غُسْلَ الْجَنَابَةِ ثُمَّ رَاحَ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَدَنَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الثَّانِيَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَقَرَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ

الثَّالِثَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ كَبْشًا أَقْرَنَ، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الرَّابِعَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ دَجَاجَةً، وَمَنْ رَاحَ فِي السَّاعَةِ الْخَامِسَةِ فَكَأَنَّمَا قَرَّبَ بَيْضَةً، فَإِذَا خَرَجَ الإِمَامُ حَضَرَتِ الْمَلاَئِكَةُ يَسْتَمِعُونَ الذِّكْرَ» (البخاري ).

ژباړه : څوک چې د جمعې په ورځ د جنابت د غسل په شان غسل وکړي او په اول وخت کې د جمعې لمانځه ته لاړ شي داسې (اجر لري ) لکه اوښ چې صدقه کړي او که څوک دوهم وخت کې (وروسته له هغه) لاړ شي داسې دی لکه غوایی چې صدقه کړی وي او څوک چې دریم وخت (وروسته له هغه) لاړ شي داسې دی لکه پسه یې چې صدقه کړی وي او څوک چې په څلورم وخت کې لاړ شي داسې دی لکه چرک یې چې صدقه کړی وي او څوک چې په پنځم وخت (وروسته لاړ شي ) داسې دی لکه هګۍ چې صدقه کړې وي .مګر کله چې امام د خطبې لپاره پاڅېږي ملائکې خپل قلمونه او لیکل پرېږدي او خطبې ته غوږ نیسي.

ابو عباس رضی الله عنه وايي کله چې زه د جمعې لمانځه ته تللم له رسول الله صلی الله علیه وسلم مې واورېدل چې فرمایل یې: «مَنِ اغْبَرَّتْ قَدَمَاهُ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، حَرَّمَهُ اللَّهُ عَلَى النَّارِ» (بخاری:۹۰۷).

ژباړه : د چا په قدمونو باندې چې د الله تعالی د لارې ګرد او غبار ولویږي په هغه باندې د دوزخ اور حرام دی.

لکه څنګه چې د جمعې د لمانځه ادا کول لوی اجر لري همداسې د هغه ترک کول ګناه او انسان لپاره لویه بدبختي ده.

## د جُمعې د لمانځه د ترک کولو حکم

د جُمعې د لمانځه ترک کول کبيره ګناه ده ، که څوک د کوم شرعي عذر پرته درې جمعې ترک کړي ، الله تعالی به يې په زړه مهر ولګوي.

او د زړه عقوبت د بدن او جسد له عقوبت او نيولو څخه ډير سخت دی.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايلي:«من ترك الجمعة ثلاث جمع تهاوناً، طبع الله على قلبه» (صحيح الحاكم و اصحاب السنن).

ژباړه : څوک چې د سستۍ له وجې د دريو جمعو لمونځونه ترک کړي الله تعالی به د هغه په زړه باندې مهر ولګوي.

يعنې : زړه به يې د منافق پشان وګرځي چې د خير څخه به محروم او نصحيت به يې په زړه اثر نکوي او زړه به يې سخت شي.

## د جومات آداب

١- جومات ته د ننوتلو په وخت کې بايد اول ښئ پښه وړاندې شي او دا دُعا وويل شي:«اللَّهُمَّ! افْتَحْ لي أبْوابَ رَحْمَتِكَ » (ای الله ! زما پر مخ د خپل رحمت دروازې پرانيزه ).

٢- د جومات له ننوتلو تر کيناستو مخکې دوه رکعته تحية المسجد لمونځ کول پکار دي، د رسول الله صلى الله عليه وسلم ارشاد مبارک دی ( په تاسې کې چې څوک جومات ته ولاړشي ترڅو يې چې دوه رکعته لمونځ نه وي کړی تر هغې دې نه کښيني ) (رواه البخاری و مسلم ).

۳- د جومات نه د وتلو په وخت کې به اول چپه پښه وړاندې کوي او دا دُعا به وايي :« اللَّهُمَّ! إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ فَضْلِكَ » (اى الله ! زه له تا نه ستا د فضل او کرم غوښتونکى يم ).

۴- په جومات کې د زيات نقش او نګار کوښښ کول نه دي پکار.

۵- جومات ته په داسې حال کې تلل چې اوږه،پياز،تنباکو او نور بد بويه شى يې خوړلي وي تلل مکروه دي لومړى دې خپله خوله وويځي بيا دې مسجد ته داخل شي.

۶- په جومات کې خبرې کول ،شورماشو کول او اخيستل او خرڅول مکروه دي له بده مرغه زمونږ د هيواد په ډيرو برخو کې چې ژمى شي او خلک وزګار شي نو بيا په جومات کې خپل بنداړونه کوي.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې : څوک چې په جومات کې خبرې کول پيل کړي ،نو ملائکې په لومړى ځل ورته وايي«اُسْكُتْ يَا وَلِيَ اللّه» يعنى اى د الله دوسته ! چوپ شه ،که بيا خبرو ته دوام ورکړي ،نو ملائکې ورته وايي «اُسْكُتْ يَا بَغِيْضَ اللّه» (چوپ شه اى د الله دوښمنه ! که بيا هم چوپ نشي نو په دريم ځل ملائکې ورته وايي «اُسْكُتْ لَعْنَتُ اللّه عَلَيْکَ» (چپ شه د الله لعنت وي پر تا).

همدارنګه په مشکوة شريف کې د شعب الايمان په حواله يو روايت راغلى چې جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايې : په اخيره زمانه کې به داسې خلک پيدا شي چې جومات ته به راځي ،هلته به ډلې ډلې کښيني

او دنیاوي خبرې به کوي تاسې له داسې خلکو سره مه کښینئ ،ځکه چې الله تعالی ته په جومات کې د داسې خلکو ضرورت نشته (عمدة الاحکام ص ۷۵ ).

ابن همام رحمه الله وایي په جومات کې دنیاوي خبرې نیکی داسې له منځه وړي لکه وچ بوټي چې اور خوري (فتح القدیر).

۷- په جومات کې په اوچت آواز لمونځ کول نه دي پکار ځکه چې د نورو د لمونځ د اخلال سبب ګرځي او د نورو په لمانځه کې اخلال ګناه ده.

۸- د جومات دروازه تړل نه دي پکار که د سامان د غلا خطر وي نو په هغه وخت کې یې تړلی شي چې د لمانځه وخت نه وي.

۹- جومات ته د جنوب ،نفاسې او حائضې ننوتل ګناه ده.

۱۰- په جومات کې لاره جوړل ناجایز دي .

۱۱- په جومات کې چې کوم ځای خالي وي هلته کیناستل په کار دي د خلکو په اوږو تیریدل ګناه ده.

۱۲- په پښو پورې که څه ختې او نور څه نیښتي وي جومات له ننولو مخکې هغه وینځل پکار دي.

۱۳- په جومات کې د ننه آذان ویل مکروه دی.

۱۴- جومات ته د داسې ماشومانو بوتلل چې د متیازو حال نشي ویلای یا داسې بې عقل او لیونی چې په پاکی او ناپاکی نه پوهیږي ننول پکار نه دي.

داسې ماشومان چې د لمانځه سن ته نه وي رسيدلی د لمونځ کونکو د آزار سبب ګرځي.

او هغه چې جومات يې تلل مشروع وي د جومات اهل بايد پر هغوی سخت ګيري ونه کړي.

## د امامت ځينې مهم احکام

### د امامت تعريف:

هر هغه څوک چې په هغې پسې اقتدا کيږي او په خير يا شر کې د هغه متابعت کيږي امام بلل کيږي.

الله سبحانه وتعالی فرمايي :[وجعلنا منهم أئمة يهدون بأمرنا] (الأنبياء:۷۳)، وقال :[وجعلناهم أئمة يَدْعون إلى النار] (القصص:۴۱).

ژباړه : او ګرځولي وو مونږ دوی داسې امامان چې سمه لاره يې ښوولە په حکم زمونږ کې (خلکو ته) او فرمايي :او ګرځولي ۇ مونږ دوی امامان چې بولي دوی (تابعان خپل په بدو عقيدو او عملو سره ) طرف د اور ته.

امامت دوه ډوله دی ، امامت کبری او امامت صغری

امامت کبری د اسلامي حکومت او شرعي سياست د عمومي امام څخه عبارت دی.

امامت صغری د لمانځه د امامت څخه عبارت دی.

### د امامت د صحت شرطونه:

اول - اسلام : د کافر امامت نه صحي کيږي.

دوهم - عقل : د ليوني امامت نه صحي کيږي.

دريم - بلوغ : د ماشوم امامت نه صحي کيږي.

څلورم - نارينه والی : د نارينه د پاره د ښځې امامت نه صحي کيږي.

پنځم - طهادت : د جنب او بې اودس امامت نه صحي کيږي.

شپږم - قرائت او ارکان : دا چې دومره قرآن به يې زده وي چې لمونځ وربانديې ادا شي او د لمانځه په ارکانو او احکامو به پوه وي ، د قاري اقتداء په آمي پسې نه صحي کيږي همدارنګه ، د عالم اقتدا په آمي پسې نه صحي کيږي.

اوم - معذور به نه وي : دا چې معذور لکه : د باد جاري والی ، د ميتيازو جاري والی او داسې نور عذر به نلري ځکه د امام ابوحنيفه او امام احمد په نزد د روغ سړي اقتدا په معذور پسې نه صحي کيږي.

آتم - صحي لسان: دا چې توتله به نه وي او د حروفو صحي تلفظ به کولای شي کچيرې د حروفو صحي تلفظ ونشي کړای مثلاً د (ذ) پر ځای (ز) تلفظ کوي او د (س) پر ځای (ث) تلفظ کوي په داسې کس پسې اقتدا نه صحي کيږي مګر په هغه صورت کې چې د جماعت موجود کسان ټول همداسې وي او د صحي تلفظ واله کس موجود نه وي.

**د امام انتخاب ( د امامت د لومړيتوب حق چا ته دی )؟**

١ -اول هغه کس د امامت وړ دی چې علم دين ولري او پخپل علم عمل کوي.

٢ -که عالم نه وي بيا هغه کس چې قرآن صحي لوستلای شي.

۳ -بیا پرهیزګاره سړی.

۴ -بیا هغه کس چې عمر یې زیات وي.

۵ -بیا هغه کس چې تر ټولو نه یې اخلاق ښه وي.

۶ -بیا هغه کس چې د وقار واله او معزز معلومیږي.

۷ -بیا که په پورته صفاتو کې مساوي وي بچه اچونه دې وکړي ورسته هغه څوک د امامت وړ دی چې مقتدیان یا اهل محل انتخاب کړی وي بیا که د خلکو په منځ کې اختلاف پیدا شو بیا هغه چې اکثریتو انتخاب کړی وي.

الأحق بالإمامة: الأعلم بأحكام الصلاة فقط صحة وفساداً بشرط اجتنابه الفواحش الظاهرة، وحفظه من القرآن قدر فرض: أي ما تجوز به الصلاة، ثم الأحسن تلاوة وتجويداً للقراءة، ثم الأورع أي الأكثر اتقاء للشبهات، والتقوى: اتقاء المحرمات،ثم الأسن: أي أكبرهم سناً؛ لأنه أكثر خشوعاً ولأن في تقديمه تكثير الجماعة،

ثم الأحسن خلُقاً (إلفة بالناس)، ثم الأحسن وجهاً (أي أكثرهم تهجداً)، ثم الأشرف نسباً، ثم الأنظف ثوباً.

فإن استووا في ذلك كله يُقْرَع بينهم، أو الخيار إلى القوم، وإن اختلفوا اعتبر الأكثر.

[فقه الاسلامي وادلته ، الدر المختار: 1/520 - 522، فتح القدير: 1/245].

**د کومو کسانو امامت مکروه دی ؟**

١- بدعتي په شرط ددې چې بدعت يې د کفر سرحد نه وي رسېدلی.

٢ -فاسق چه ګناوي کوي او په قرآن او سنتو باندې سم عمل نه کوي.

٣ -جاهل ، د جاهل سړي امامت مکروه دی.

۴ -ړوند که داسې ړوند وي چې په پاکۍ او صفايۍ پوهېږي نو بيا باک نه لري.

۵ -په داسې کس پسې لمونځ کول مکروه دی چې لمونځ اوږدوي د سنت اندازې څخه قرآئت او اذکار اوږدوي دا که قومورباندې راضي وي يا نه.

جاء في فقه الاسلامي وادلته:

يكره تطويل الصلاة على القوم تطويلاً زائداً على قدر السنة في قراءة وأذكار، والكراهة تحريمية عند الحنفية، سواء رضي القوم أم لا.

په دليل د دغه حديث:

عن أبي مسعود رضي الله عنه قال:أتى رجل النبي صلى الله عليه وسلم فقال: إني لأتأخر عن صلاة الغداة، من أجل فلان مما يطيل بنا، قال: فما رأيت رسول الله صلى الله عليه وسلم قط أشد غضباً في موعظة منه يومئذ، قال: فقال: (يا أيها الناس، إن منكم منفرين، فأيكم ما صلى بالناس فليتجوز، فإن فيهم المريض والكبير وذا الحاجة.(البخاری).

ژباړه: دابن مسعود رضی الله عنه نه روايت دی چې يو سړی راغی او جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم ته يې شکايت وکړ چې فلانی

(امام) دسهار په لمانځه کې دومره اوږده سورتونه لولي چې په هغه پسې لمونځ نشم کولای یا د پریښودو ویره لرم .

ابو مسعود انصاري وایې چې: ما جناب رسول الله صلی الله علیه وسلم هیڅکله دومره په قهر نه ؤ لیدلی لکه چې په دغه وخت کې مې ولید جناب رسول الله خلکو ته په خطاب کې وویل :چې ځنې دا راز خلک شته چې هغوی خلک متنفر کوي یعنی په خلکو کې د (دجماعت او اسلام په مقابل کې) کرکه پیدا کوي کوم خلک چې له تاسې څخه خلکو ته لمونځونه ورکوي باید هغه لمونځونه اوږده نه کړي ځکه چې په لمونځ کوونکو کې زاړه ،کمزوري ،د ضرورت او کار خاوندان او هر ډول خلک موجود وي .

له پورته یوائې یو حدیث څخه هم دا په ډاګه شوه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم یو رحمت للعلمین پیغبردی اسلام درحمت دین دی .

۶ -په داسې کس پسې لمونځ کول مکروه دي چې خلک یې نه غواړي ، خلک د هغه نه نفرت کوي.

«لایقبل الله صلاة من تقدم قوماً، وهم له کارهون» (القوانین الفقهیة: ص ۶۹).

۷ -په داسې کس پسې اقتداء کول مکروه دي چې په جماعت کې د خلکو د شرکت کولو په وجه لمونځ اوږدوي ځکه داسې کول ریا ده حق اولیت د

موجودو خلکو دی نه د هغو چې وروسته راځي او په دې صورت کې په حاضرو خلکو باندې تکلیف دی.

۸ -په ولد زنا پسې لمونځ کول مکروه دي.

۹ -کچیرې امام د مقتدیانو څخه د یو ذراع (۶۰ سانتې) په اندازه یا د هغه څخه لوړ وي اقتدا کول ور پسې مکروه دي.

همدارنګه د احنافو په نزد د لاندې کسانو امامت مکروه تنزهي دی:

بدرنګ او بد قواره که څه هم په موجودو خلکو کې عالم وي ، او د داسې کس امامت چې د شهوت او فتنې وېره وي لکه : بې ږېرې بالغ هلک او داسې نور ، بې عقل سړی چې معاملاتو او کارونه یې د شرعی او عقل خلاف وي ،په فیس مرض اخته کس ، د داسې کس چې لاس یې د غلا په حد سره قطع شوی وي ، سود خور ، هغه کس چې د یو کس خبرې بل کس ته رسوي او ریا کار.

جاء في الفقه الاسلامي وادلته:

يكره تنزيهاً إمامة الأمرد الصبيح الوجه، وإن كان أعلم القوم، إن كان يخشى من إمامته الفتنة والشهوة، وإلا فلا كراهة على الأظهر. وتكره إمامة السفيه (وهو الذي لا يحسن التصرف على مقتضى الشرع أو العقل) والمفلوج، والأبرص الذي انتشر برصه، والمجذوم،، وآكل الربا، والنمام: (وهو من ينقل الكلام بين الناس على جهة الإفساد، والنميمة من

الكبـائر، ويحـرم على الإنسـان قبولها)، والمرائي: (وهـو من يقصـد أن يـراه الناس، سواء تكلف تحسين الطاعات أو لا).

**د آذان احكام**

**تعريف** : آذان په لغت کې اعلان ته وايي او په اصطلاح کې هغه خاص الفاظ دي چې د هغو په وسيله د لمانځه وخت معلوميږي د لمانځه ادا کولو طرف ته بلنه کيږي.

**مشروعيت:**

آذان په قرآن او سنتو ثابت شوی دی.

په دليل د دغه قول د الله تعالى :[وإذا ناديتم إلى الصلاة...](المائدة: ٥٨).

ژباړه : او کله چې غږ کوئ تاسې طرف د لمانځه ته (آذان کوئ ).

او په سنتو کې په دې باره کې ډير احاديث نقل شوي لکه :«إذا حضرت الصلاة، فليؤذن لكم أحدكم، وليؤمّكم أكبركم» (نيل الأوطار:٢/٣٢).

ژباړه : او کله چې د لمانځه وخت شي بايد يو تاسې آذان وکړي او بايد مشر د تاسې امامت وکړي.

**د مؤذن فضيلت :**

د آذان په کولو کې لوی فضيلت او ستر اجر دی ، رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي: «لو يعلم الناس ما في النداء، والصف الأول، ثم لم يجدوا إلا أن يَسْتهموا عليه، لا ستهموا عليه» (متفق عليه).

ژباړه : کچیرې خلک د آذان او اول صف د ثواب څخه خبر شي د هغه د تر لاسه کولو لپاره يې پرته له بچې اچونې بله چاره نه لرله . حتماً به يې په هغه باندې بچه اچونه کوله.

همدارنګه فرمايي :«إِنَّهُ لا يَسْمَعُ مَدَى صَوْتِ الْمُؤَذِّنِ جِنٌّ وَلا إِنْسٌ وَلا شَيْءٌ إِلا شَهِدَ لَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» .(بخاری:۶۰۹).

ژباړه : پيرى ، انسان او نور هر مخلوق چې د مؤذن غږ واوري د قيامت په ورځ به په هغه باندې شهادت ورکوي.

او بل حديث شريف راغلي :«المؤذنون أطول الناس أعناقاً يوم القيامة» (المسلم واحمد).

يعني : د قيامت په ورځ به په ټولو خلکو کې د مؤذنينو غاړې اوږدې وي (له جهته د احترام ).

**د آذان حکم:**

آذان په اتفاق د فقهاؤ د پنځه وخته جماعت د پاره سنت مؤکد دی.

(فقه الاسلامي وادلته ،فتح القدير، الدر المختار:۱/۳۵۶).

**د آذان د صحت شرطونه:**

۱- دا چې د لمانځه وخت داخل شوی وي.

۲- دا چې جماعت يې واروي يا که منفرد وي خپله يې واروي.

۳- دا چې آذان په هغه ترتيب سره وويل شي کوم چې په سنتو کې ثابت شوی دی.

۴- دا چې آذان يو کس ووايي نه يو ډله يا جماعت.

۵ -دا چې مؤذن به مسلمان ، عاقل ، پوه او نارينه وي د غير مسلم ، ليوني ، ناپوهه ماشوم او نشه کس او همدارنګه د فتنې له وېرې د ښځې آذان نه صحي کيږي.

**د آذان کيفيت:**

د فقهاؤ په اتفاق آذان په داسې شان سره لوستل کيږي کوم چې په سنتو کې ثابت شوی دی په هغه کې به هيڅ کمی او زياتی نه وي يوازې د سهار په آذان کې دوې کلمې (الصلاة خير من النوم ) اضافه کيږي.

د آذان کليمات دا دي:

«الله أكبر، الله أكبر، الله أكبر، الله أكبر، أشهد أن لا إله إلا الله، أشهد أن لا إله إلا الله، أشهد أن محمداً رسول الله، أشهد أن محمداً رسول الله، حي على الصلاة، حي على الصلاة، حي على الفلاح، حي على الفلاح، الله أكبر، الله أكبر، لا إله إلا الله» . (رواه ابوداود ).

**د آذان سنتونه:**

۱- دا چې آذان به په ښه صوت او لوړ آواز ويل کيږي.

۲- دا چې آذان به په ولاړه ، لوړ ځای او جومات ته نږدې لوستل کيږي.

۳- دا چې مؤذن به آزاد ، بالغ ، صالح او د لمانځه په وخت پوه وي .

۴- دا چې مؤذن به اودس لرونکي وي بغير له اودس څخه آذان کول مکروه دي

په دليل د دغه حديث : «لا يؤذن إلا متوضئ(سبل السلام:۱/۱۲۹).

۵- دا چې مؤذن ليدونكى وي ړوند نه وي ځكه د لمانځه وخت نشي ليدلاى په دليل د دغه حديث: «كان رجلاً أعمى لا ينادي حتى يقال له: أصبحت، أصبحت» (رواه البخاري).

يعنې : يو ړوند سړى وو څو پورې به يې چې هغه د طلوع فجر څخه خبر نه كړ (تر هغه پورې به يې آذان نه كولو).

۶- دا چې مؤذن به په عوږونو كې كوتې ننباسي په دليل د دغه حديث : «أن بلالاً أذن، ووضع إصبعيه في أذنيه» (متفق عليه ).

۷- دا چې آذان په كراره او د دوو كلمو تر مينځه وقفه پكې وي مګر په اقامت كې به بېړه وي .په دليل د قول رسول صلّى الله عليه وسلم چې بلال رضى الله عنه ته يې فرمايل: «إذا أذنت فترسَّل، وإذا أقمت فاحدر» (الترمذي).

يعنې : كله چې آذان كوې هغه كرار په سكون سره او وقفه وقفه كوه او كله چې اقامت كوې په هغه كې بيړه كوه.

۸- دا چې مؤذن به مخامخ قبلې ته دريږي.

همدارنګه مستحب ده چې د حى الصلاة او حى الفلاح ويلو پر مهال خپل مخ ښي او ګيڼ لورې ته وګرځوي.

۹- دا چې په آذان باندې هيڅ اجرت وانخلي د امام ابوحنيفه په نزد په آذان باندې اجرت اخيستل جايز نه دي په دليل د دغه حديث :رسول الله

صلّى الله عليه وسلم عثمان بن ابى العاص ته وويل :: «واتخذ مؤذناً لا يأخذ على أذانه أجراً»(أبو داود وابن ماجه والترمذي).

يعنې : داسې مؤذن ونيسه چې په اذان كولو اجرت نه اخلي.

لكن متأخرينو احنافو اجازت وركړى دى ځكه چې اوس عصر هغوى ته د بيت المال څخه څه نه وركول كيږي.

۱۰- مستحب دى چې آذان په اول وخت كې وشي ځكه چې خلك د لمانځه په وخت خبر شي او د لمانځه د پاره تيارى ونيسي.

جابر بن سمرة رضى الله عنه وايي: «كان بلال لا يؤخر الأذان عن الوقت» (ابن ماجه).

يعنې : بلال رضى الله عنه د وخت (اول وخت ) څخه آذان نه ځنډولو.

**د آذان مكروهات:**

۱- د پورته بيان شويو سنتو مخالفت كول.

۲- د آذان په الفاظو كي نحوي يا د اعراب (حركاتو ) لحن او علطي كول مكروه دي.

۳- په آذان كې تلل او قدم اخيستل مكروه دي.

**د آذان ځواب وركول:**

جناب رسول الله صلى الله عليه وسلم د آذان په ځواب وركولو چې يو د آذان ظاهري ځواب او بل د هغه حقيقي ځواب وركول يعنې جومات ته تلل دي د

جنت زېرى ورکړى دى خو افسوس چې زمونږ خبرې او مجلس د آذان په وخت کې هم جاري وي او جومات ته د جماعت ادا کولو لپاره ډېر کم خلک ځي .

د آذان په ځواب کې به هماغه د مؤذن الفاظ تکراروي يعنې کله چې مؤذن ووايي «الله أکبر الله أکبر» اوريدونکى به هم وايي «الله أکبر الله أکبر» همداسې تر آخره ، خو د «حيَّ على الصلاة » او «حيَّ على الفلاح» په ځواب کې به « لا حول ولا قوة إلا بالله » وايي .

څوک چې آذان ته د زړه څخه ځواب ورکړي داخل به شي جنت ته (رواه مسلم ٣٨٥:).

«إذا قال المؤذن الله أكبر الله أكبر فقال أحدكم الله أكبر الله أكبر ثم قال أشهد أن لا إله إلا الله قال أشهد أن لا إله إلا الله ثم قال أشهد أن محمدا رسول الله قال أشهد أن محمدا رسول الله ثم قال حي على الصلاة قال لا حول ولا قوة إلا بالله ثم قال حي على الفلاح قال لا حول ولا قوة إلا بالله ثم قال الله أكبر الله أكبر قال الله أكبر الله أكبر ثم قال لا إله إلا الله قال لا إله إلا الله من قلبه دخل الجنة » (رواه مسلم : ٣٨٥ ) .

**د آذان دعا :**

«اللَّهُـمَّ رَبَّ هَـذِهِ الـدَّعْوَةِ التَّامَّـةِ، وَالصَّـلاةِ الْقَائِمَـةِ، آتِ مُحَمَّـدًا الْوَسِـيلَةَ وَالْفَضِيلَةَ، وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَحْمُودًا الَّذِي وَعَدْتَهُ» .

ژباړه : ای الله ! ددې مکملې بلنې او کيدونکې لمونځ پروردګاره ! محمد صلی الله عليه وسلم ته په جنت کې خاصه درجه ، او خاص فضيلت ورکړې ، او هغه ستايلى شوي مقام ته يې ورسوي کوم چې تا ورسره وعده کړې .

د جابر بن عبدالله رضی الله عنه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي : څوک چې آذان واروي او دا دعا (اللَّهُمَّ رَبَّ هَذِهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ، وَالصَّلاةِ الْقَائِمَةِ، ......) ووايي نو هغه کس به زما د شفاعت څخه برخمن شي.(البخارى:۶۱۴).

**اقامت**

د اقامت حکم د آذان په شان سنت مؤکد دی.

د احنافو په نزد د اقامت الفاظ به د آذان په څير دوه دوه ځله ويل کيږي او د حی الفلاح وروسته به دوه ځله (قد قامت الصلاة ) ويل کيږي په دليل د دغه حديث چې ابن ابي شيبه روايت کړی دی چې عبدالله ابن زيد انصاري رسول الله صلى الله عليه وسلم ته راغلى او ويې ويل :«يا رسول الله، رأيت في المنام، كأن رجلاً قام وعليه بُردان أخضران، فقام على حائط، فأذن مثنى مثنى، وأقام مثنى مثنى» (رجاله رجال الصحيح، وهو متصل لأن الصحابة عدول، وجهالة أسمائهم لاتضر، ورواه البيهقي. وروي مثله عند أبي داود وغيره ( نصب الراية: (/1-266،267).

او همدارنګه په دليل د دغه حديث شريف :عبد الله بن زيد وايي : «كان أذان رسول الله صلّى الله عليه وسلم شفعاً شفعاً في الأذان والإقامة» (الترمذي و الدارقطني).

مګر د امام شافعي او امام مالک په نزد په اقامت کې به يو يو لفظ لوستل کيږي مګر يوازې لفظ د (قد قامت الصلاة ) دوه ځله لوستل کيږي

.

د هغوی دليل دا حديث شريف دی:

«إنما كان الأذان على عهد رسول الله صلّى الله عليه وسلم مرتين مرتين، والإقامة مرة مرة، غير أنه يقول: قد قامت الصلاة، قد قامت الصلاة» (رواه أحمد والنسائي وأبو داود).

**د اقامت احكام:**

د اقامت احکام د آذان په شان دي کوم چې مخکې بيان شول په اقامت کې لاندې شيان سنت او مستحب دي :

١- دا چې د اقامت په لوستلو کې به بيړه کيږي.

٢- دا چې اقامت به هغه څوک وايي چا چې آذان کړی وي.

٣- د احنافو په نزد مستحب دا ده چې لمونځ کوونکي د (حی الفلاح ) ويلو په وخت کې لمانځه ته پاڅيږي.

۴- سنت دی چې اقامت ويونکی به ولاړ ، قبلې ته مخامخ او د اقامت پر مهال به تګ نه کوي.

۵ -د امام د پاره د صفونو برابرول مستحب دی او هغه به مقتدیانو ته وايي :صفونه برابر کړئ ، رسول صلی الله علیه وسلم به فرمایل :«سووا صفوفکم، فإن تسوية الصف من تمام الصلاة» (متفق علیه).

یعنې : خپل صفونه مو برابر کړئ ، ځکه چې د صف برابرول د لمانځه د پوره والی څخه دی.

## د امام او مقتدي ترمينځ مشترک احکام

### اول د اقتداء د صحت شرطونه:

۱ -د متقدې د اقتداء نیت په امام پسې.

۲-اتحاد د لمانځه ، د احنافو په نزد د امام او مقتدي لمونځ به یو وي د فرض کوونکي اقتدا په نفل کوونکي پسې نه صحي کیږي .مګر د نفل کوونکي اقتدا په فرض کونکي پسې صحي کیږي ځکه دا بنا د ضعیف په قوي باندې همدارنګه اقتدا د اودس کوونکي په تیمم کوونکي او د اودس کوونکي په موزو باندې مسحه کوونکی پسې صحي کیږي.

۳ -مقتدي به د امام څخه مخکې نه وي بلکي د یو قدم په اندازه به شا ته وي.

۴ -د امام او مقتدیان ځای به یو وي داسې چې هغه ووینې یا یې عږ واروي داسې چې مکان یې یو نه وي لکه : مقتدیان په یو سپرلی کې او امام په بله سپرلی کي یا امام سپور وي او مقتدیان پیاده وي ، یا یې ترمینځ لاره چې

خلک تګ را تګ کوي یا تر مینځ لویه ویاله وي په دغو صورتونو کې اقتدا نه صحي کیږي.
۵ -د امام متابعت کول ، د امام په مخالفت سره اقتدا نه صحي کیږي.

**د صفونو برابرول:**

۱ -که یو مقتدي وي د امام ښي طرف ته یو قدم وروسته به دریږي د امام سره برابر دریدل مکروه دي.
۲ -بالغ کسان به په مخکې صفونو کې او ماشومان به په وروسته صفونو کې دریږي.
۳ -امام به د صف د وسط برابر دریږي.
۴ -د امام د پاره مستحب ده چې صفونه برابر کړي مقتدیانو ته ووايي چې صفونه سیده او منظم کړي او د صفونو تر میځ فاصله نه وي.
ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم به صفونه برابرول او داسې به یې فرمایل : «لا تختلفوا فتختلف قلوبکم» (رواه مسلم ).
یعنې : کاږه مه دریږئ (سیده او نږدې ودریږئ ) که (کاږه ودریږي )نو زړونه به مو کاږه شي.
که په صف کې ځای وي جلا دریدل مکروه دي.
۵ -کچیرې په لمانځه کې امام معذور او بې اودسه شي ، بل متقدي به تر جامه ونیسي او په محراب کې به یې ځای پر ځای کړي.

**د اول صف فضیلت:**

اول صف ته ځان رسول مستحب دي او ډیر اجر لري.

د ابی هریرة رضی الله عنه نه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي: «لو یعلمون ما في الصف المقدم لكانت قرعة» (متفق علیه).

یعني: که تاسې د اول صف په اجر او فضیلت پوهیدلای نو بچه اچونه به مو کوله.

همدارنګه فرمایي : «إن الله وملائكته يصلون على الصف الأول» (حدیث صحیح رواه أبو داود).

یعني: یقیناً الله او د هغه ملائکې په اول صف باندې درود وایي.

**د امام او مقتدې څو فرعي احکام:**

۱ -کچیرې متقدي تشهد ویل نه وي ختم کړي او امام سلام وګرځوي مقتدي به تشهد ختم کړي بیا به سلام ګرځوي.

۲ -کچیرې مقتدي درود او دعا نه وي ختم کړي امام سلام وګرځوي مقتدي به د امام سره سلام ګرځوي درود او دعا ویل به پرېږدي.

۳ -کچیرې په لومړی قعده متقدي تشهد نه وي ختم کړی او امام پورته شي مقتدې به تشهد ختموي بیا به پورته کیږي.

۴ -که مقتدي په رکوع او سجده کې درې ځله تسبیح نه وي ویلې او امام پورته شي مقتدي به ورسره پورته کیږي او نور تسبیحات ویل به ترک کوي.

۵ -د امام څخه مخکې سلام ګرځول مکروه تحریمي دي.

۶ -د آذان څخه وروسته د جومات څخه وتل او په دې جومات کې لمونځ نه کول مکروه دي.

(مراقي الفلاح: ص۵۰، الدر المختار:۱/۵۶۰).

**د مسبوق احکام :**

متقدي په درې قسم دی : مدرک ، لاحق او مسبوق.

مدرک : هغه چا ته وایي چې د امام سره یې لمونځ پوره کړی وي.

لاحق : هغه چا ته وایي چې امام سره یې یو رکعت یا څو رکعته پوره کړي وي او د جماعت په شروع کې حاضر وي مګر د څه عذر له کبله څه رکعتونه ورڅخه فوت شوي وي.

مسبوق : هغه چا ته وایي چې یو رکعت یا څو رکعته ورڅخه فوت شوی وي.

مسبوق چې د امام سره یې څه رکعتونه موندلي وي هغه به د امام سره ادا کړي باقي رکعتونه چې څه پاتې وي هغه به په لاندې ډول پوره کړي.

که څوک د امام سره رکوع ونیسي هغه په حقیقت پوره رکعت نیولی دی.

**اول :** که له چا څخه یو رکعت تېر شوی وي نو د امام د یو طرف سلام ګرځولو وروسته به پاڅي سوره فاتحه او بل سورة به ولولي رکوع ، سجده او قعده (التحیات ، درد او دعا ویل ) به وکړي سلام به وګرځوي.

**دوهم :** که دوه رکعتونه ورڅخه تېر شوي وي نو لومړی رکعت به ډک ادا کړي دوهم رکعت به هم ډک ادا کړي ځکه د قرآن لوستلو په اعتبار دا د ده دوهم رکعت دی او دوهم رکعت ډک وي وروسته به رکوع ، سجده او قعده وکړي د سلام په ګرځولو سره به لمونځ ختم کړي .

**دریم :** که دری رکعتونه ورڅخه تېر شوي وي نو پاڅې به سوره فاتحه او بل سورت به ولولي د رکوع او سجدې وروسته به قعده وکړي ځکه چې یو رکعت یې له امام سره ادا کړی او دا د ده دوهم رکعت دی په دوهم رکعت کې کیناستل یا قعده وي په دې قعده کې د التحیات ویلو وروسته به پاڅي دوهم رکعت به هم ډک ادا کړي ځکه چې د قرآن لوستلو په اعتبار دا د ده دوهم رکعت دی او د امام سره دا د ده دریم رکعت دی نو په دې رکعت کې قعده نشته څلورم رکعت به تش (یوازې فاتحه ویلو ) سره ادا کړي بیا به رکوع ، سجده او قعده وکړي سلام به وګرځوي.

**د سترې احکام :**

**د لمونځ ګزارله مخې تیریدل څه حکم لري ؟**

د لمونځ کونکی له مخې تیریدل ګناه ده که په جومات کې وي او که بل ځای په حدیث شریف کې یې په اړه داسې وعید ذکر شوی دی :

عن أَبِي جُهَيْمٍ رض قَالَ: قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ صلى الله عليه وسلم : «لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَيِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ، لَكَانَ أَنْ يَقِفَ أَرْبَعِينَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَمُرَّ بَيْنَ يَدَيْهِ». قَالَ الراوي: لا أَدْرِي أَقَالَ: أَرْبَعِينَ يَوْمًا أَوْ شَهْرًا أَوْ سَنَةً. (بخاري: 510)

ترجمه: ابوجهيم رضى الله عنه روايت كوي چه رسول اكرم صلى الله عليه وسلم وفرمايلي: څوک چې د لمونځ كونكى له مخې تيريږي ، كه پوهيدلاى چې دا كار څومره ګناه لري ،تر څلويښتو كلونو به يې توقف كولو مګر د لمونځ كونكي له مخې به نه تيريدلو ، راوي وايي : په ياد مې نه ده چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې : څلويښت ورځې ،كه مياشتې او كه كال .

كه د لمونځ كونكى مخې ته كوم شى موجود نه وي بايد د سُترې مخې ته لمونځ وکړي رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : «اذا صلى احدكم فليصل الى سترة» (ابوداود) .

يعنى كله چې له تاسې څوک لمونځ كوي نو د ستره مخې ته يې دې كوي .

ستره هغه شى ته وايي چه لمونځ كونكى هغه خپلې مخې ته ږدي كه هغه لرګى وي كه بل شى تر څو د لمونځ كونكي له مخې تيريدونكي لمونځ اخلال نه کړي .

**د سترې احکام او مسائل :**

۱- د ستره لوړوالی یو ګز یا تر هغه زیات وي .

۲- که امام خپلې مخې ته ستره ودروي نو مقتدیانو ته ضرور نه ده .

۳- مستحب ده چې لمونځ کونکی ستره لږ څه ښی یا چپ طرف ته ودروي او مخامخ نه وي .

۴- که لوی جومات یا آزاده فضا وي د لمونځ کونکی د پښو نه د سجدې تر ځای پورې تیریدل جواز نه لري (فقه مُیسر )، فتاوي المحمودي وايي: د سجدې له ځای نه تقریباً یو متر مخکی مسافې نه تېردلای نه شي . (فتاوي المحمودي ، رد المحتار: ۲/۳۹۸).

۵- که کوچنی جومات یا کور وي د لمونځ کونکی له پښو نه د قبلې تر دیوال تیریدل جواز نه لري .

۶- لمونځ باید بې له ستره داسې ځای ونه شي چې هلته د خلکو تګ راتګ وي.

۷- که د لمونځ کونکی له مخې نه څوک تیریږی باید د تسبیح په اشاره یا د قرائت د صوت د لوړوالی په واسطه یې منع کړي ، خو دا جایزه نه ده چې په لاس یا خبره یې منع کړي .

و الله سبحانه وتعالی اعلم

پنځم فصل

## د جومات په اړه څو مهم احکام او مسائل

### په جومات کې خوب او خوراک کول څه حکم لري ؟

ځواب : د معتکف (اعتکاف کوونکي) او مسافر پرته بل چاته په جومات کې خوب او خوراک کول مکروه دي.

كره الأكل في المسجد والنوم فيه وقيل : لا بأس للغريب أن ينام فيه ، وأما بالنسبة للمعتكف فله أن يشرب ويأكل وينام في معتكفه لأن النبي صلى الله عليه وسلم لم يكن يأوي في اعتكافه إلا إلى المسجد ، ولأنه يمكن قضاء هذه الحاجة في المسجد فلا ضرورة إلى الخروج

[فتح القدير 1 / 300 ، وحاشية ابن عابدين على الدر المختار 1 / 444].

و الله سبحانه وتعالى اعلم

### د پخواني جومات نړول او يا پلورل څه حکم لري ؟

ځواب : کچیرې د جومات ماحول خلک اوسیږي او لمونځ په کې کیږي نو د جومات بیع جایزه نه ده.

او کچیرې خلک د يوې منطقې نه بل ځای ته د سماوي آفاتو ، رزق و غيره له وجې کډه شي او جومات بالکل د کاره ولويږي يعنې هلته څوک نه وي چې لمونځ پکې وکړي نو د داسې جومات د خرڅولو په باره کې درې اقوال دي :

اول قـول : کـه جومـات لـه کاره ولـویږي او هلتـه لمونځ نـه کیږي د قاضي پـه اجـازه یې خرچـول رواه دي د خـرچ شـوې جومـات پیسـې بـه هغـه تـه نږدې جومات کې لګول کیږي .

المبسـوط للسرخسـي (12 / 42 .43)، وحاشـية ابـن عابـدين (4 / 358 . 359).

دوهـم : د جومات خرچـول جـايز نـه دى ځکـه وقـف دى او وقـف بـه پخپـل حال وي .

المبسـوط للسرخسـي (6 / 12 / 42)، وشـرح فـتح القـدير لابـن الهـمام (5 / 445).

دريـم قـول : د محمـد بـن حسـن حنفي دى هغـه وايي : د هغـه جـومات بيـع جـايز ده کـوم چې لـه کاره لـودلى وي ځکه کـوم جومات چې لـه کاره لـودلى وي کـه هغه خرچ شي او پيسې پر بل جومات کې مصرف شي نـو د وقـف هـدف بـه بيرته تـر لاسـه شي .

المبسوط للسرخسي (6 / 12 / 42).

احکـام المسـاجد فى الشـرعية اسـلامية د ځلـورو واړو مـذاهبو د فقهـاؤ د اقـوال د اوږد بيان وروسته د جومات بيع ته ترجيح ورکوي په هغه صورت کې چې نومـوړى جومـات لـه کار لـولى وي او هغـه پيسـې پـه بـل جومـات کې مصرف شي .

ومما تقدم من مناقشة وبيان لما تؤول إليه آلة المسجد ووظائفه، فإن الراجح هو جواز بيع المسجد، وتصريف آلته على ما تقدم بيانه.

د سعودي عربستان د علمي څېړنې او افتاء دايمي ټولنې هم د جومات د بيع او يا د هغه بدلول په مثل باندې يا د ضرورت په وخت کې د يوه بيع او په هغه باندې بل جومات جوړول جايز بللي دي :

فتاوى اللجنة الدائمة" (38/16) .

وسئلت اللجنة أيضا عن بناء مسجد كبير بجوار مسجد قديم ، وتحويل القديم إلى مدرسة لتعليم أبناء المسلمين ؟

فأجابت : " لا مانع من إقامة المسجد الجديد ، وتقويم المسجد القديم بواسطة أهل الخبرة بالسعر أرضا وبناية ، وصرف قيمته في تعمير مسجد آخر في بلد محتاج إلى ذلك ، وجعل مكانه مدرسة لتعليم العلوم الشرعية " انتهى .

والله سبحانه وتعالى أعلم .

**په يوه کلي کې دوه جوماتونه جوړول څه حکم لري ؟**

ځواب :

مناطق او سيمې د زمان او مکان له حيثه فرق لري چې ځنې ښارونو په دَرو او بيا دَرې په وړو وړو کليو ويشل شوي وي نو په يوه منطقه او سيمه کې د جوماتونو د شمير او تعداد زياتولو صورتونه دا دي:

**اول** : هغه جوماتونه چې په هغه کې د جُمعې پرته پنځه وخته لمونځ کيږي

د داسې جوماتونو څنګ په څنګ او نږدې جوړول او یا د یو جومات تقسیم په دوو جوماتونو باندې د ضرار ، اختلاف او تفرقې په قصد حرام دي مګر که ضرورت وي ( د لارې مشکل ، د ځای تنګوالی او نور) بل جومات ته نږدې جومات جوړول جایز دي مګر د جومات تقسیمول جایز نه دي ، خو غوره دا ده چې همغه جومات ته پراخوالی ورکړ شي.

**دوهم** : دا چې د جُمعې ادا کولو لپاره د وړوکې جومات پرته بل لوی او مرکزي جومات جوړ شي باک نلري.

جاء في أحكام المساجد في الشرعية الاسلامية:

تختلف البلدان من زمن إلى آخر، ومن مكان إلى مكان آخر، فربما كان البلد بالأمس قرية صغيرة، وهو اليوم مدينة كبيرة تحتوي على عدة أحياء، كل حي يعادل القرية أو يزيد. والكلام في تعدد المساجد من وجهين– :

الوجه الأول: تعدد المساجد التي تقام فيها الصلوات غير الجمعة.

نص العلماء – رحمهم الله تعالى – على تحريم بناء مسجد بجوار مسجد، أو بقربه، لقصد الإضرار والمنافسة، وهكذا قسمة المسجد الواحد إلى مسجدين، لقوله سبحانه وتعالى : والذين اتخذوا مسجدا ضرارا وكفرا وتفريقا بين المؤمنين ... (التوبه ١٠٧ ).

فأما للضرورة والحاجة فيجوز بناء مسجد قرب مسجد آخر أو جنبه، ولا تحل قسمة المسجد إلى مسجدين؛ لأنه لا ضرورة تدعو لذلك. والأفضل توسعة المسجد، ولا يبنى بجواره مسجد

الوجه الثاني: تعدد المساجد التي تقام فيها الجمعة.

[أحكام المساجد في الشرعية الاسلامية ،المبسوط (1/ 140)، وتفسير القرطبي (4 / 8/ 254)]،

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**په اوس عصر کې د ښځو تلل جومات ته څه حکم لري ؟**

ځواب:

د رسول الله صلى الله عليه وسلم په حيات مبارک کې ښځې د جماعت لپاره جومات ته تللې مګر د خلفاء راشدينو په دور کې د فتنې له وجې منع شوې ، په هر صورت د ښځې د پاره نظر جومات ته په کور کې لمونځ کول غوره دي ، د ښځې د پاره غوره جومات خپل کور دی.

په حديث شريف راغلي : «لا تمنعوا نساءكم المساجد، وبيوتهن خير لهن» (أبو داود و ابن خزيمة).

ژباړه : تاسې خپلې ښځې له جومات څخه مه منع کوئ ، مګر د دوی کورونه (د لمانځه د ادا کولو د پاره ) غوره دي (زيات ثواب لري نسبت جومات ته ).

د امام ابوحنیفه او صاحبین په نزد د ځوانو ښځو تلل جومات ته مطلق مکروه دي ځکه چې په دې کې د فتنې وېره ده ، امام ابوحنیفه رحمه الله وايي : د زړو ښځو لپاره سهار ، ماښام او ماسختن جومات تلل باک نلري ځکه د سهار پر مهال فاسقان خلک وېده وي او د ماښام او ماسختن په وخت مشغول وي د فتنې وېره دومره نه وي مګر صاحبان (ابو یوسف او محمد ) وايي: د زړو ښځو حضور په ټولو لمونځونو کې باک نلري ځکه فتنه نشته.

مګر د متأخرینو فقهاؤ مفتی به قول دا دی : چې په اوس عصر کې چې د فتنې عصر دی په مطلق ډول د ښځو تلل جومات ته منع دي که څه هم زړې ښځې وي ځکه چې اوس عصر کې فاسقان ډېر دي.

جاء في فقه الاسلامي وادلته:

قال أبو حنيفة وصاحباه : يكره للنساء الشوابّ حضور الجماعة مطلقاً، لما فيه من خوف الفتنة، وقال أبو حنيفة: ولا بأس بأن تخرج العجوز في الفجر والمغرب والعشاء؛ لأن فرط الشبق حامل (باعث (فتقع الفتنة، وفي غير هذه الأوقات الفساق نائمون في الفجر والعشاء، ومشغولون بالطعام في المغرب، وأجاز الصاحبان لها أن تخرج في الصلوات كلها؛ لأنه لا فتنة، لقلة الرغبة فيهن.

والمذهب المفتى به لدى المتأخرين: أنه يكره للنساء حضور الجماعة ولو

لجمعة وعيد ووعظ، مطلقاً، ولو عجوزاً ليلاً، لفساد الزمان، وظهور الفسق.

[فقه الاسلامي وادلته ،فتح القدير:1/529، الدر المختار وحاشية ابن عابدين: 1/529].

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**په زاړه قبرستان کې د جومات جوړول څه حکم لري ؟**

ځواب:

په قبرستان کې لمونځ کول د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نزد مکروه دي او د امام احمد رحمه الله په نزد مطلق حرام دی .

جاء في الموسوعة الفقية :

ذهب الحنفيّة والشّافعيّة إلى كراهة الصّلاة في الطّريق، والحمّام، والمزبلة، والمجزرة، والكنيسة، وعطن الإبل، والمقبرة، لما روى ابن عمر – رضي الله تعالى عنهما -: «أنّ النّبيّ صلى الله عليه وسلم: نهى أن يصلّى في سبعة مواطن: في المزبلة والمجزرة والمقبرة وقارعة الطّريق وفي الحمّام وفي معاطن الإبل وفوق ظهر بيت اللّه».

په دليل د دغه حديث شريف : الأرض كلها مسجد إلا المقبرة والحمام ( رواه ابوداود و الترمذي ) .

او په دليل د دغه حديث : لعنة الله على اليهود والنصارى اتخذوا قبور أنبيائهم مساجد( البخاري و مسلم ) .

په قبرستان کې يا قبرستان ته مخامخ جومات جوړول جايز نه دى.

په دليل د دغه حديث شريف : لا تجلسوا على القبور ولا تصلوا إليها ( رواه مسلم ) .

مګر كه قبرستان څه لرې د جومات څنګ ته وي يا د جومات او قبرستان ترمينځ حائل وي لكه ديوال ، سړک ، وياله يا لريوالى چې نه معلوميږي نو بيا لمونځ كول صحي دي .

إذا كان بينك وبين المقابر جدار فاصل فلا بأس من الصلاة حينئذٍ ولا نهي ، كذلك إذا كان بينك وبينها شارع أو مسافة لا تصير بها مصلياً إلى المقابر فلا بأس .

**په جومات کې كلمې او نور شيان ليكل څه حكم لري ؟**

د ضرورياتو نه علاوه په جومات کې نقشونه جوړول ، ليكنې كول او داسې نور مكروه دي او د جوماتونو زيات زينت او نقش نګار د قيامت له علامو څخه دي د انس رضى الله عنه نه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي : « لا تقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد » (رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه) .

وفي " الموسوعة الفقهية " ( 23 / 217 ، 218 ) :

ذهب جمهور الفقهاء إلى أنه يكره زخرفة المسجد بذهب أو فضة ، أو نقش ، أو صبغ ، أو كتابة ، أو غير ذلك مما يلهي المصلي عن صلاته ؛ لأن النبي صلى الله عليه وسلم نهى عن ذلك ، فعن ابن عباس رضي الله عنهما

قال : قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : ( ما أمرت بتشييد المساجد ) والتشييد : الطلاء بالشِّيد ، أي : الجص ، قال ابن عباس : " لتزخرفنها كما زخرفت اليهود والنصارى " ، وعن أنس رضي الله عنه أن النبي صلى الله عليه وسلم قال : ( لا تقوم الساعة حتى يتباهى الناس في المساجد ) – رواه أبو داود والنسائي وابن ماجه ، وصححه الألباني – ، وروى البخاري في صحيحه أن عمر رضي الله عنه أمر ببناء مسجد وقال : " أكنَّ الناس من المطر ، وإياك أن تُحمِّر أو تصفِّر فتفتن الناس " ، وقال أبو الدرداء رضي الله عنه : " إذا حلَّيتم مصاحفكم وزخرفتم مساجدكم فالدمار عليكم " ؛ ولأن ذلك يلهي المصلي عن الصلاة بالنظر إليه فيخل بخشوعه ، ولأن هذا من أشراط الساعة .

قال علماء اللجنة الدائمة :

لا تجوز كتابة اسم الجلالة ( الله ) وكتابة ( محمد ) اسم الرسول صلى الله عليه وسلم محاذياً له في ورقة أو في لوحة أو على جدار ؛ لما يتضمنه هذا العمل من الغلو في حق الرسول صلى الله عليه وسلم ومساواته بالله ، وهذا وسيلة من وسائل الشرك ، وقد قال عليه الصلاة والسلام ( لا تطروني كما أطرت النصارى ابن مريم ، إنما أنا عبد ، فقولوا : عبد الله ورسوله ) – رواه البخاري – ، والواجب منع تعليق هذه اللوحات أو الورقات ، وطمس الكتابات التي على الجدران التي على هذا الشكل ؛

حماية للعقيدة ، وعملا بوصية الرسول صلى الله عليه وسلم .

" فتاوى اللجنة الدائمة " المجموعة الثانية ( 1 / 169 ، 170 ) .

**پوښتنه :** په جومات کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زيارت تصوير ځړول څه حکم لري دلته د کلمبيا په هيواد کې په جومات کې د جومات ښى لور ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زيارت عکس ځوړند دى په دې اړه شرعى حکم څه دى ؟

**ځواب :** په جومات کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زيارت تصوير ځوړول بدعت دى ځکه چې دا عمل نه د صحابوو او نه د تابعينو او نه د نورو خيرالقرون په دور کې چې د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يې بې حده محبت لرلو نه دى ثابت شوى .[علماء البلدالحرام (١/٢٠٣ )] .

و الله سبحانه وتعالى اعلم

**په جومات کې په يو وخت کې دوهمه جَمع کول څه حکم لري ؟**

ځواب :په هغه جومات کې چې پنځه وخته جمعه په پابندى سره کيږي د دوهمې جمعې کول مکروه دي

ويكره تكرار الجماعة بأذان واقامة فى المسجد محلة (درمحتار ) وفى الشاملة : وقد منافى باب الأذان أن عند أبى يوسف أنه اذا لم تكن الجماعت على هيئة الأولى والاتكره وهو صحيح (باب الامامة ١ / ٥٥٣ سعيد ).

مګر په لاندې صورتونو کې جایز دي:

۱- که په کوم جوماتونو کې آذان او جمع په پابندی سره نه ادا کیږي یا د لارې پر سر وي چه هر وخت خلک ځي راځي نو په داسې جوماتونو کې دوهمه او دریمه جمع کیدای شي په داسې جوماتونو کې به د هرې جمع ثواب د جماعت وي.

۲- په کوم جوماتونو کې چه آذان او جمع کیږي او امام هم مقرر وي که دغه جوماتونه د بهر نه خلک راشي نو دوهمه جمعه کولای شي د دوهمې جمعې قید د محلي د خلکو د پاره دی ( اسلامي فقه ص ۸۹ ).

و فی الرد:

ولنا «أَنَّه عَلَيهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ كَانَ خَرَجَ لِيُصْلِحَ بَينَ قَوْمٍ فَعَادَ إِلَى الْمَسْجِدِ وَقَدْ صَلَّى أَهْلُ الْمَسْجِدِ فَرَجَعَ إِلَى مَنْزِلِهِ فَجَمَعَ أَهْلَهُ وَصَلَّى» ولو جاز ذلك لَمَّا اخْتار الصَّلاة في بيته على الجماعة في المَسْجد، ولأن في الإطلاق هكذا تقليل الجماعة معنى، فإنهم لا يجتمعون إذا علموا أنها لا تفوتهم وأمَّا مَسْجد الشَّارع فالنَّاس فيه سواء لا اختصاص له بفريق دون فريق ا هـ ومثله في «البدائع» وغيرها، ومقتضى هذا الاستدلال كراهة التكرار في مسجد المحلة ولو بدون أذان؛ ويؤيده ما في «الظَّهيرية»: لو دخل جماعة

المسجد بعدما صلى فيه أهله يصلون وحداناً وهو ظاهر الرواية ».(رد المحتار:409/1).

والله اعلم بالصواب

**مسنونه خطبي**

**د جمعي خطبه :**

د جُمعی د لمانځه د وخت په دننه کې د جمعې د لمانځه نه مخکې خطبه ویل شرط دی .

خطبه عبارت ده له : تحمید او الحمدالله ویل ، درود شریف او شهادتین او حد اقل درې لنډ آیتونه ویل او څه نور د همغه جمعې نصیحت او بیا کیناستل دوهمه خطبه کې الحمدلله ، شهادتین ، درود او د خلفاء راشدینو ، حمزه او عباس یادول مستحب دي ، د خطبې ترتیب داسې دی:

**لومړی خطبه**

إِنَّ الْحَمْدَ للهِ، نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ، وَنَعُوذُ بِاللهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا، مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلَا مُضِلَّ لَهُ، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَا هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ صلى الله عليه وسلم ، [يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ] (آل عمران:102).

[يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا] (النساء:1).

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا * يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا] (الأحزاب:70- 71).

أَمَّا بَعْدُ:

فَإِنَّ أَصْدَقَ الْحَدِيثِ كَلَامُ اللهِ عَزَّ وَجَلَّ، وَخَيْرَ الْهَدْيِ هَدْيُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، وَشَرَّ الأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا، وَكُلَّ مُحْدَثَةٍ بِدْعَةٌ، وَكُلَّ بِدْعَةٍ ضَلَالَةٌ، وَكُلَّ ضَلَالَةٍ فِي النَّارِ.

په دې ځای کې څه لنډ نصيحت او يا د جمعې د وعظ د مطلب مربوط لنډ آيت او يا حديث لوستل.

**الخطبة الثانية (دوهمه خطبه )**

إِنَّ الحَمْدَ للهِ نَحمَدُهُ ونَستَعِينُهُ ونَستَهْدِيهِ ونَشْكُرُهُ، ونَعُوذُ بِاللهِ مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنا وَسَيِّئاتِ أَعْمالِنا، مَن يَهْدِ اللهُ فَلا مُضِلَّ لَهُ وَمَن يُضْلِلْ فَلا هادِيَ لَهُ ، وَأَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لا شَرِيكَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ، وَالصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ عَلَى خَيْرِ الأَنَامِ مُحَمَّدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، وَعَلَى آلِهِ وَصَحْبِهِ صَلَاةً وَتَسْلِيماً عَلَى الدَّوَامِ.

أَمَّا بَعْدُ:

په دې ځای کې هم د موضوع موافق لنډ آیت یا حدیث لوستل او وروسته لاندې دعا کول.

اللَّهُمَّ اصْرِفْ عَنَّا وَعَنْ جَمِيعِ الْمُسْلِمِينَ شَرَّ مَا قَضَيْتَ، اللَّهُمَّ الْطُفْ بِنَا وَبِجَمِيعِ الْمُسْلِمِينَ فِي قَضَائِكَ وَقَدَرِكَ يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ.

عِبادَ اللهِ :[إِنَّ اللَّهَ يَأْمُرُ بِالْعَدْلِ وَالْإِحْسَانِ وَإِيتَاءِ ذِي الْقُرْبَى وَيَنْهَى عَنِ الْفَحْشَاءِ وَالْمُنْكَرِ وَالْبَغْيِ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ*وَأَوْفُوا بِعَهْدِ اللَّهِ إِذَا عَاهَدْتُمْ وَلَا تَنْقُضُوا الْأَيْمَانَ بَعْدَ تَوْكِيدِهَا وَقَدْ جَعَلْتُمُ اللَّهَ عَلَيْكُمْ كَفِيلًا إِنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا تَفْعَلُونَ] (النحل:90-91).

فَاذْكُرُوا اللهَ الْعَظِيمَ الْجَلِيلَ يَذْكُرْكُمْ، وَاشْكُرُوهُ عَلَى نِعَمِهِ يَزِدْكُمْ، وَلَذِكْرُ اللهِ أَكْبَرُ، وَاللهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ.

**د اخترونو خطبه :**

**عِيدُ الأَضْحَى الْمُبَارَكُ (لوى اختر) :**

## الخُطْبَةُ الأُولَى

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا

والحمدُ للهِ كثيراً وسبحانَ اللهِ وبحمدهِ بكرةً وأصيلاً، وأشهدُ أنْ لاَ إلهَ إلاَّ اللهُ وحدَهُ لاَ شريكَ لهُ لهُ الملكُ ولهُ الحمدُ وهوَ علَى كُلِّ شيءٍ قديرٌ، وأَشْهَدُ أَنَّ سيِّدَنَا مُحَمَّدًا عَبْدُ اللهِ وَرَسُولُهُ وصفيُّهُ مِنْ خلقِهِ وحبيبُهُ بلَّغَ الرسالةَ،

وأدَّى الأمانةَ، فاللَّهُمَّ صَلِّ وسلِّمْ وبارِكْ علَى سيدِنَا محمدٍ وعلَى آلِهِ وصحبِهِ أجمعينَ، ومَنْ تَبِعَهُمْ بإحسانٍ إلَى يومِ الدِّينِ.

وروسته به د اختر د ورځې د فضيلت او اهميت همدارنګه د قربانۍ او د اختر د لمانځه احکام او د اختر د ورځې مسنونه آداب بيان کړي، د وعظ او نصيحت په مينځ کې به تکبيرات وايي.

اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ ولِلّٰهِ الحمدُ

## الخطبةُ الثانيةُ

اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ

اللّٰهُ أَكْبَرُ كبيرًا والحمدُ للّٰهِ كثيرًا، الحمدُ للّٰهِ الَّذِي بنعمتِهِ تتمُّ الصَّالحاتُ, وأشهدُ أنْ لا إلهَ إلاَّ اللّٰهُ وحدَهُ لاَ شريكَ لَهُ، وأشهدُ أنَّ سيدَنا محمَّدًا عبدُهُ ورسولُهُ, اللهمَّ صلِّ وسلِّمْ وبارِكْ على سيِّدِنَا محمَّدٍ وعلى آلهِ وصحبِهِ أجمعينَ.

**أمَّا بعدُ:**

وروسته به بيا هم وعظ او نصيحت وکړي او خپله خطبه به پای ته ورسوي.

**عِيدُ الْفِطْرِ الْمُبَارَكُ (کوچنی اختر):**

## الْخُطْبَةُ الأُولَى

اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ اللّٰهُ أَكْبَرُ

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ

اللَّهُ أَكْبَرُ كبيرًا والحمدُ للهِ كثيراً وسبحانَ اللهِ وبحمدِهِ بُكْرةً وأصيلاً وأشهدُ أنْ لاَ إلهَ إلاَّ اللهُ وحدَهُ لاَ شريكَ لهُ القائلُ :] وَلِتُكْمِلُوا العِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللَّهَ عَلَى مَا هَدَاكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ [ وأشهدُ أنَّ سيِّدَنَا محمَّداً عبدُهُ ورسولُهُ , وصفيُّهُ منْ خلقهِ وحبيبُهُ القائلُ :« إِنَّ لِكُلِّ قَوْمٍ عِيداً وَهَذَا عِيدُنَا » اللهمَّ صلِّ وسلِّمْ وبارِكْ علَى سيِّدِنَا محمَّدٍ وعلَى آلِهِ وصحبِهِ ومَنْ تبعَهُمْ بإحسانٍ إلَى يومِ الدينِ.

وروسته وعظ او نصحيت ، د فطر او اختر د احکامو او مسائلو بيان .

او د نصيحت په مينځ کې تکبيرات ويل :

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ

او خپله خطبه په لاندې دعا پای ته رسول :

أقولُ قولِي هذَا وأستغفرُ اللهَ لِي ولكُمْ فاستغفرُوهُ.

## الخُطْبَةُ الثَّانيةُ

اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ اللَّهُ أَكْبَرُ

اللهُ أكبرُ والحمدُ للهِ المبدئِ المعيدِ، الفعَّالِ لِمَا يُريدُ، منَّ علينَا بصيامِ رمضانَ وإدراكِ العيدِ، ووعدَنَا بالجنَّةِ والمزيدِ، وأشهدُ أنْ لاَ إلهَ إلاَّ اللهُ وحدَهُ لاَ شريكَ لَهُ، وأشهدُ أنَّ سيدَنَا محمَّدًا عبدُهُ ورسولُهُ، اللهمَّ صلِّ وسلِّمْ وبارِكْ علَى سيِّدِنَا محمَّدٍ وعلَى آلِهِ وصحبِهِ أجمعينَ .

**أمَّا بعدُ**: وعظ او نصيحت

**د نكاح خطبه :**

إِنِ الحَمْدَ لِلهِ نَحْمَدُهُ وَنَسْتَعِينُهُ وَنَسْتَغْفِرُهُ وَنَعُوذ بالله مِنْ شُرُورِ أَنْفُسِنَا وَمِنْ سَيِّئَاتِ أَعْمَالِنَا مَنْ يَهْدِهِ اللهُ فَلاَ مُضِلَّ لَهُ وَمَنْ يُضْلِلْ فَلاَ هَادِيَ لَهُ، وَأَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلاَّ اللهُ وَحْدَهُ لاَ شَرِيكَ لَهُ وَأَنَّ مُحَمَّداً عَبْدُهُ وَرَسُولُهُ.

د هغه وروسته به لاندې درې آيتونه ولولي:

[يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنْتُمْ مُسْلِمُونَ}، {يَا أَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوا رَبَّكُمُ الَّذِي خَلَقَكُمْ مِنْ نَفْسٍ وَاحِدَةٍ وَخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيرًا وَنِسَاءً وَاتَّقُوا اللَّهَ الَّذِي تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ إِنَّ اللَّهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيبًا}، {يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا * يُصْلِحْ لَكُمْ أَعْمَالَكُمْ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ وَمَنْ يُطِعِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ فَازَ فَوْزًا عَظِيمًا].

بيا به ووايي:

:أَمَّا بَعْدُ، فَإِنَّ خَيْرَ الحَدِيثِ كِتَابُ الله، وَخَيْرُ الهُدَى هُدَى مُحَمَّدٍ، وَشَرُّ الأُمُورِ مُحْدَثَاتُهَا، وَكُلُّ مُحْدَثةٍ بدْعَةٌ، وَكُلُّ بِدْعَةٍ ضَلالَةٌ، وَكُلُّ ضَلالَةٍ فِي النَّارِ». (أخرجه أبو داود والنسائي وابن ماجه).

و ما توفيقي الا بالله عليه توكلت و اليه انيب

حمدالله "شاكري"

دراسات الاسلامية – الاكاديمية الاسلامية العالمية